# څرک

نهم کال دریمه ګڼه - پرلپسې ۷۹ ګڼه - سلواغه ۱۳۹۲ل، ربیع الثاني ۱۴۳۵ق-فروري ۲۰۱۴م

## د کابل اداره به تر څو د خپل شکست عوامل په ګاونډ کې لټوي ؟

## د ژبې ازار ...

## استخباراتي کړۍ به له دوبۍ څه ترلاسه کړي ؟

## اوکراین څوک ناارامو ي ! ؟

## سوانح مختصر شهید مولوی صاحب عبدالرقیب رح

## سیّاف؛ مبلّغ کفر از آدرس اسلام!

بدخشان



## په منځنۍ افریقا کې د مسلمانانو عامه وژنه د چا په لمسون او د څه لپاره؟

# څرک

علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه

سرليک

نهم کال دريمه ګڼه – پرلپسې ۷۹ ګڼه – سلواغه ۱۳۹۲ل، ربيع الثاني ۱۴۳۵ق – فروري ۲۰۱۴م




**امتياز :**

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل ميرني او افضل محمد تراب

**ګڼوت :**

افغانستان : ۱۸۰ افغانۍ

پاکستان : ۲۴۰ کلدارې

امريکا : ۶۰ ډالره

اروپا : ۶۰ يورو

يوه ګڼه : ۱۵ افغانۍ ۲۵ کلدارې


**يادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی .


**پتې :**

تخنيکي چارې : عابد مجاهد

کابل : د څرک دفتر

srak_111@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحيم

## سرمقاله

# د کابل اداره به ترڅو دځپل شکست عوامل په ګاونډ کې لټوي ؟

یرغلګرواوددوی ګوډاګیانوفکر کاوه چې دژمي په موسم کې به داسلامي امارت دسرتېرومجاهدینوله بریدونواوجهادي تکتیکي عملیاتوڅخه دوی خوندي اوپه امن کې وي اوتودوصندلیوته به دژمي یخې شپې په ارام اوسکون تیرې کړي ؛خوخبرندي چې څوک دایمان اواخلاص په جامه اوجذبه ملبوس اوښایسته وي اومعامله یې صرف له مهربان اومتعال رب سره وي ، هغوی ته توده اوسړه هوا، ژمی اواوړی ،پسرلی او خزان بې تفاوته اویوبرابروي .

دهمدغه دیانت اووفاداري نتیجه وه چې داسلامي امارت سرښندونکواتلانودژمي په ورځواوشپو کې بهرني یرغلګراوددوی اجیران هم په کابل کې اوهم په ولایتونو،اطرافواواکنافو کې وځپل اودرانه زیانونه یې ورواړول ،چې د کابل وزیراکبرخان په لبناني هوټل کفرلړزونکی برید، دننګرهاردغني خیلوولسوالی کې دیرغلګروپه مهم پوځي مرکز کې لویه چاودنه اود۲۱ اشغالګرووژل کېدل،دکندهارژیړۍ په ولسوالی کې دعملیاتوپه ترڅ کې دیودرځن امریکایانوله منځه تلل ، دهلمندولایت په یوشمیرسیمو کې په خارجي دښمن پریکنده ګوزارونه ، دسروبي ولسوالی کې داجیرې اردوپه مهم مرکز ویجاړوونکی بریداودغازي اباد په ولسوالی کې د۲۵ تنواجیروعسکرووژل کیدل اونورورته بریدونه هغه جهادي بریاوې اوحقایق دي چې اتلومجاهدوغازیانوپه روان ژمي کې په خورامهارت اوفداکاری یوپه بل پسې ترسره کړل اودښمن ته یې په ډاګه کړه چې دمجاهددتوري له ګوزارڅخه په یووخت کې هم دشیطان اوګمراهی لښکري نشي بچ کیدای !

مکاررژیم اوباداران یې چې کلک ګوزاروویني اوله ورخیزڅخه وغورځي، نوددې پرځای چې په خپلې ناتوانی اوماتي اعتراف وکړي اوشکست خورده پوځي چارواکي یې استعفاورکولوته اړشي، برعکس یوې زړې اوپرسوده پلمې اوبهانې ته ژرلاس وراوړد کړي ، چې ګواکي دغه اویاهغه بریدچې مخالفینوترسره کړی، پلان یې په ګاونډي هیوادکې جوړشوی اوبیامغرضه میډیاهم دادځانودتیرایستلوپاره نغاره ډیرژر غاړي ته اچوي اوله حقایقوليري عواملوته ګوته نیسي ، لکه په دې ورستیوکې یې چې دغازي اباد په پیښه کې په طرف کې ولاړې میډیاناولي اوله زهرورډک تبلیغات په کارواچول اودسیاسي سواداباازی لپاره یې حقایق سرچپه تعبیر کړل.

مونږ ارګ ، پارلمان!، مدني ټولنو اوناترسې میډیانه وایوچې دهغومظلوموافغانانوجنازې ولې ارګ ته نه وړل کیږي اوور ته ډول ډول تبلیغاتي کمپاینونه نه چلول کیږي چې دامریکااواجیرې اردوپه توسط هره ورځ په افغانستان کې په ډیرې بې رحمی وژل کیږي اوپه کورونوېې خرواروته بمونه اوري ،دهغوپه اړه ولې داخبره نه راپورته کیږي ، چې عاملین اوقاتلین یې څوک دي اوچیرته یې دوژل کیدوتصمیم نیول شوی وو؟

ښکاري چې خبره دوه مخي ده، دافغان مظلوم ولس مرګ ، وینه اوزیان ، ارګ ، اجیرپارلمان ، امریکایی میډیااوټولوهغوټولنو اوبشري سازمانونوته چې په افغانستان کې فعالیت کوي هیڅ ارزښت نلري ، بلکې دوی ته صرف امریکایي زیان اودامریکایي ګټولپاره دجنګیدونکي اردومرګ ژوبله مهمه ده چې کله رامنځته شي نولکه دغازي اباددپیښي په څیرورته دخواخوږي پراخ کمپاینونه کیږي، فاتحې یې اخیستل کیږي اوپه تابوتونویې دګلانوګیډۍ ایښودل کیږي .

خودغه مکارجهتونه بایدپوه وي چې لمرپه دوګوتونه پټیږي ، نن ورځ هرڅوک پوهیږي چې امریکایان افغانستان ته دڅه لپاره راغلي اودغه شرمیدلې ۳نیم لکه اردویې دکوموموخولپاره جوړه کړي ده؟

اونه پوهیږو چې دکابل رژیم به ترڅودځپل هر شکست اورسوایي وجوهات ددې پرځای چې په خپلو بګیلوپوځي قطعاتواوپه نیشواوتماشواخته اردوکې یې پیداکړي ، تل یې عوامل په بې بنیاده پلموپه ګاونډاوله هیواده بهر لټوي ؟

# استخباراتي کړۍ له دوبۍ څه ترلاسه کوي ؟!

عبید خلیل

زه چې دافغانستان دطالبانو داسلامي تحریک په باب ځومره تجربه اوفهم لرم ، الله تعالی دغه حرکت ته داځانګړتیا اوامتیازوربښلی، چې په لیکه اومنځ کې یې غداري اوملوثې ځیرې هیڅکله ځای نشي تیرولی اوساتلی ، ارومرو یې الله تعالی برملاکوي اوخبایث یې خلکوته وربښیی.

ددغه لوی انعام اوامتیاز مهمه وجه داده چې طالبان اوقیادت یې هغه څه چې په خولې وایي هغه یې دزړه اواز هم دي ، دوه مخي نلري ، په دیني ارزښتونو اوملي ګټوسوادابازي ته نه حاضریږي اوترټولو اهمه خبره داده چې داسلام دغه ریښتیني پتنګان داسلام په لار اودهیواد په دفاع کې دومره صادق اومخلص دي چې دخپلې قیمتي ککرې ځارولو ته تیاریږي ، خو په خپله لمن اوهویت دغداری اوبې همتی داغ په هیڅ بیه نشي زغملی.

امریکااوغرب له طالبانو سره له تیرو ۱۸ کلونوراهیسي په همدې شخړه کې درګیردي چې طالبان دامریکانړیوالې بدماشی اوپرسوده تهذیب ته غاړه نه کږوي ، که نن هم الله دې نکړي طالبان یوځوفیصده امریکایی فرمایشات ومني ممکن امریکااوغرب دطالبانو ډیروغوښتنو ته غاړه کیږدي اوزیات څه یې ومني.

خو اتل طالب قیادت په ړومبی ورځ ورته ویلي چې نه دې بدماشي منم ، نه دې ناولی اوپرسوده قانون منم ، نه دې




نمایشي انتخابات منم ، نه دې دښځودعفت اوعصمت دلوټلو په نامه ازادي منم اونه دې نورې اسلام دښمنه پروژې دمنلو اوتطبیق وړدي ، طالب نن هم په هماغه دلایلو ټینګ اولکه غر مستحکم ولاړدی طالب په دې پوهیږي چې که یوڅپک اولویشت هم دامریکااوغرب په وړاندې تنزل وکړي ، هم به دالله په وړاندې ذلیل اوخجل وي اوهم به مکاره اودوکماره امریکاترینه راضي نشي ، لکه چې بعینه دغه حالت اوس په کرزي صادقیږي ، چې نه یې الله تعالی خوښ اوملت راضي کړ اونه یې هم هغه امریکاچې دده اونورو تالیختو په متواوګرمو شعارونو افغانستان ته رادننه شوه

اودافغانستان حریت اوحرمت دهغوی پښو ته وغورځاوه خپله اوخوشاله کړله !!

امریکایان اودکابل رژیم چې دطالب ځواک، واحدقیادت اوپه خپل دریځ استقامت ولید اوپه نظامي میدان کې هیڅ په لاس ورنغلل نودفریب اودوکې لارې ته مخه کړه اودلسګونو میلونو ډالروپه لګښت یې هڅه وکړه چې دطالب په واحدصف کې دمیانه رو اوسخت دریځي په نومونو درز اوتفرقه واچوي.

په دغه میدان کې هم غلیم چنداني پرمختګ ونشو کړای، صرف یوڅوتنه مادیات پرسته هغه عناصر چې ټول عمریې دمادیاتو اوچوکي لپاره ځان وقف کړی وو اوپه خپل کورکې ورونو اوځامنو هم ورسره همدردي نه درلوده اونه یې لري هغه یې دطالبانودپخوانیو غړوترعنوان لاندې څه دسولې په شوراکې ونیول اوکوم یونیم یې دمعتصم په خیالي شورواکې وردننه کړل، چې ددغو ټولو شمیرلسو تنو ته هم نه رسیږي.

خودطالب حقانیت ته ګوره چې الله تعالی یې دښمن څومره ژررسواکوي، په دې ورستیوکې استخباراتي کړیو ګڼ داسې خبرونه خپاره کړل چې دسولې شورا اوطالبانو ترمنځ په دوبۍ کې مذاکرات روان اویاترسره کیدونکي دي اودمذاکراتولپاره له طالب لوري څخه دهغوی ددور پنځه تنه مهم پخواني وزیران برخه اخلي.

خوچې کله طالب ویاند ذبیح الله مجاهد ددوبۍ مذاکرات بې اساسه وښودل اوخپل مخالفت یې ورسره په ډاګه کړاو چلینج یې ورکړ چې دهغووزیرانونومونه دې واخلي چې په اصطلاح لدوی سره په دوبۍ کې مذاکرات کول غواړي، نوپه دې وخت کې دکابل استخباراتي کړی اړشوي چې اصلي خبره وکړي چې هولدوی سره دطالبانو داسلامي تحریک استازي دسولې خبرې نلري، بلکې له متعصم اغا سره تاکل شوي چې دسولې اوروغې خبرې ترسره شي.

اوس هرڅوک پوهیږي چې معتصم، پرته له ځان اوکوم اشپزاوموټرچلونکي څخه بل څوک لري؟ چې شاته یې ودریږي اووایي چې زه یې هم غړی اوملګری یم، که داسې وي دیوڅو تنو نومونه خو دې کومه ورځ میډیاته واخلي !!

معتصم خلک پیژني چې څومره وزن لري اودکومو وجوهاتواواخلاقو له وجې له پاک صف څخه تجرید کړی شو، نوچې بیاهم په هغه پسې څوک ځي هغه به له معتصم څخه هم په کردار او اخلاقو کې لویدلې څیره وي.

داسې ښکاري چې دکابل دسولې اودارګ امنیتي شورا همدغه یوه ورستی دسیسه دمعتصم په شکل کې لرله اوله تیرو۲ کلونوراهیسې یې پرې زیات لګښت اوکارکړی وو چې بالاخره هغه هم ددوبۍ دسولې دنمایشي خبروپه بربنډیدوکې له وخت مخکې شنډه اوله کاره وغورځیده.

ددوبۍ دسولې له ورستیو منډوترړو اوتبلیغاتوڅخه په ډاګه شوه چې دکابل شړیدلې اداره اوخپله امریکایان ترکومه حده وارخطااوسربداله دي چې یوه داسې کس ته هم امیدلري چې په ټول هیوادکې دیوې مسلحې دلګۍ واک اواختیارهم نلري اونه یې ترڅنګ داسلامي امارت کومه پیژندل شوې څیره اوپوځي قوماندان ولاړه دی، نوپوښتنه داده چې که فرضاً دسولې اوروغې خبرې له هغه سره په مخ ولاړې شي په کوم ډاډاوامکاناتوبه معتصم په جنګي برخه کې فشار اودباوکم کړي اوله جهادي بریدونوڅخه به یې یوڅو ورځې په ارام اوخوندي وساتي ؟

معلومیږي چې غلیم نوردرسوایي اوشکست هغه حدته رسیدلی چې هرخس اوخاشاک ته لاس وراوږدوي، خو دوی دې په یادولري چې دبشپړې غرقیدوورځې یې په شماردي، که نن وی که سبا، باداران به یې ترې تنهاپښې سپکوي اواجیران به یې دمجاهدتورې بریښ ته همدلته پاتې کیږي، انشاالله تعالی

# اوکراین څوک نااراموي !؟

عبید تنویر




اروپایي اتحادیه غواړي چې اوکراین ، مولداوی ، بلاروس ، ارمنستان ، ازاربایجان اوګرجستان چې دقفقاز په سیمه کې واقع دي ،ځانته نیږدي اوتودي تجارتي اوسیاسي اړیکي ورسره ولري ، دغه یادهیوادونه یووخت دپخواني شوروي اتحادپه سیطري کې شامل واودساړه جنګ ترپایته پوري دمسکو ترمستقیم نفوذلاندې چلیدل .

دهمدې روان کال دنومبرپه ۲۸ او۲۹ نیټه دلیتوانیاپه پلازمینه ( ویلنیوس ) کې اروپایي اتحادیي دپورته موخو دترلاسه کولوپه خاطرناسته ترسره درلوده اوپه خاص ډول له یادوهیوادونوڅخه تمه درلوده ،چې له اروپاسره یوازادتجارتي تړون لاسلیک کړي ،خواوکراین یې په ځغرده مخالفت وکړ ، دغه کار داروپایي اتحادیي هیلوته لویه مایوسي واړوله.

له بل لوري داوکراین زیات وګړي اودپارلمان نیمایی استاځي له واکمنو سره په دې اخ ډوب پیل کړ اوخبره یې خونړیو اعتراضونوته ورسوله ، چې ولې واکمن دروسي په ځای له اروپاسره تودو اړیکو او تجارت ته ترجیح نه ورکوي.

دشنونکوپه اندپه اوکراین کې دوه مهم علتونه شتون لري چې دنوموړي هیوادوګړي یې سره ویشلي دي چې یو علت یې داخلي اوبل یې هم خارجي دي .

داخلي مشکل ددې باعث ګرځیدلی چې نوموړي هیوادته سیاسي بې ثباتي اوپراخ ارج مرج راولی ، اوکراین چې ۷/ ۶۰۳ زره کلومتره مربع مساحت لري اوله فرانسي ورسته داروپایی اتحادیي دوهم لوی هیواد بلل کیږي ، ۴۵ میلونه وګړي لري ، په دې معناچې له المان ،انګلستان ، فرانسي اوایټالیاڅخه دنفوسو په لحاظ اوکراین څلورم هیواد ګڼل کیږي .

خودجغرافیي له نګاه نه اوکراین دشرق له لوري له غرب اواروپاسره نښلي ، یعني داوکراین شرقي ایالتونه اوښارونه چې دنوموړي هیواد ۷۰ فیصده ناخالص تولیدات ټاکي ،وګړي یې اوس هم دغرب اواروپاپر ځای له روسیې سره نیږدي والی غواړي اوتیارندي چې غرب اواروپایی په تولیداتوخیټه واچوي

داوکراین په شرقي برخو کې لاهم روسیي فرهنګ اوژبه حاکمه ده ، له بل لوري په مذهبي لحاظ شرقي اوکراینیان دارتدوکس دهغې کلیساپیروان دي چې روسي رنګ پرې غالب اومسلط دی .

داوکراین غربي منطقه بیاد( نیپیر ) بنی ساحلي اړخ کې قرار لري چې پولي یې له لهستان اواسلواکیا سره تړاونیسي، داوکراین دغربي منطقې وګړي بیاله شرقي وګړو برعکس غربګرااوپه کله ددې غوښتونکي دي چې له غرب اواروپاسره اړیکي اوتماس ولري ، دوي په مذهبي لحاظ بیاد کاتولیکي کلیساپیروان دي .

داوکراین دخلکودغه قومي ، مذهبي ، اوهویتي توپیرونه هم که پرځای پریښودل شي ، یوبل مهم عامل چې دشرقي اوغربي اوکراین دخلکو ترمنځ یې شدیداختلافونه رامنځته کړي ، هغه دشرقي اوکراین مساعد اودپام وړ اقتصاددی ، ځکه دشوروي اتحاد په مهال زیاتره صنعتي ، کرهنیز اودتولیدمراکز په شرقي برخه کې تاسیس اوجوړشوي ، همدغه لامل دی چې غربي اوکراین تل په دغه حالت ناخوښ وي اوداعتراضونوسرچینه یې هم له همدغه ټکي څخه پیلیږي اوله تیرو

دولسیزو راهیسي همیش داوکراین دښتمنیود مساوي ویش اوعدالت غوښتني په ډاګه کوي .

خوله دغو دو داخلي ستونزواو قابتونوسره سره یوخارجي بعداورقابت هم شته چې داوکراین خلک یې سخت په کړاو کې ساتلي اودیته یې نه پریږدي چې نوموړی هیواد ترقي وکړي اودهوسایی ګډ ژوندسره ولري ،چې هغه دروس اوغرب لاسوهني اوزورازمایي دي .

روسیی ته داوکراین اهمیت په دې کې دي چې نوموړی هیوادد توري بحیري یوشمیر مهم سواحل اوبندرونه لکه «سواستوپل» او«اودسا» په اختیار کې لري ، داهغه بندرونه دي چې پخواني شوروي اتحاد به دخپلوبحري بیړیوپه برخه کې مهمه استفاده ترینه کوله اواوس هم یوډول استفاده له همدغوبندرونوڅخه په اساني کولای شي ، په بل اړخ کې بیااوکراین دګازواوتیلومهمه اړتیاله روسیي څخه پوره کوي




غرب اوپه خاص ډول امریکا بیا په دې موخه چې اوکراین دروسیي له دام اواغیزنه راوباسي له ډیرې مودې راهیسي په اوکراین لاس کش کوي اوپه نړیوالوغربي ، اقتصادي ، امنیتي اوسیاسي تړونونو کې یې په عضویت مني

خلاصه داچې داوکراین داخلي سیمه ییز( شرقي اوغربي ) کشمکش اودروسیي اوغرب ترمنځ استراتیژیکه سیالي اومداخلي ،هغه ښکاره دلایل اووجوهات دي چې داوکراین سیاسي ثبات اوداخلي همغږی یې سخته زیانمنه کړي اوله یوې نه بلې ورځې ته یې داوکراین برخلیک ، پرمختګ اوسوکالي له پوښتنواوتیاریکیوسره مخ کوي .

# شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله ویناوی

۱ـ ستاسو لوی دښمن ستاسو بد ملګری دی.
۲ـ ښیګڼه هغه ده چې له خلکو نه یې دستاینې هیله ونه شي.
۳ـ دنیک کار پیل ستاسو کار دی اوپای یې الله پاک ته پرېږدئ.
۴ـ که دخدای پاک نږدې والی مو خوښ وي نوپر مخلوق یې لورینه وکړئ.
۵ـ د نفس په ناروا غوښتنو سر مه ګروئ که نه له تباهۍ اوهلاکت سره به مخ شئ.
۶ـ له ویجاړو قبرونو نه عبرت واخلئ، ځکه چې دډېرو ځوانانو هډوکي پکې خاورې شوي دي.
۷ـ دمرګ یادول دنفس دټولو رنځونو ښه درملنه ده.
۸ـ ښه عمل نورو ته ور کړه ده ، نه ، له نورو نه غوښتنه .
۹ـ مؤمن خپل کورنۍ الله پاک ته سپاري او منافق یې جائیداد اوشتمنۍ ته.
۱۰ـ ستاسوغیبت کونکي په حقیقت کې تاسو ته ګټه رسونکي دي، ځکه خپلې ښیګڼې ستاسو دعمل پر پاڼه لیکي

# نسل کشي مسلمانان در آفريقاي مرکزي !!

افکار.ن

کشور آفريقاي مرکزي از محروم‌ترين کشورهاي جهان به شمار مي‌رود و مسلمانان که قريب ۲۰ درصد از جمعيت چهار و نيم ميليوني اين کشور را تشکيل مي‌دهند محروم‌ترين قشر جامعه محسوب مي‌شوند. اين کشور از چندي قبل آماج حمله شورش‌هاي افراطي وابسته به قبيله موسوم به "آنتي باکالا" قرار گرفته است که عمدتاً از مسيحيان مي‌باشند و در اين ميان، مسلمانان اصلي‌ترين قرباني اين شورش‌هاي قومي هستند و افراطيون مسيحي با هجوم به مناطق مسلمان نشين، به وحشيانه‌ترين شکل آنها را مورد حمله قرار مي‌دهند و از هيچ جنايتي فروگذار نمي کنند. شورشيان که از هيچ جنايتي ابا ندارند با انواع سلاح‌ها، والدين را در مقابل کودکان اغيشه بخون مي کنند. رفتار ضد انساني شورشيان با مسلمانان اين کشور بسيار تکان دهنده است به گونه‌اي که ساکنان از ترس مهاجمان، خانه و کاشانه و دارائي خود را ترک کرده و فوج فوج در بيابانها، به خصوص در مناطق هم مرز با چاد پناه مي‌برند. گزارش‌هاي رسيده حاکي است که دولت‌هاي همسايه نيز از پذيرش آوارگان خودداري مي کند و در کل، يک فاجعه انساني و نسل کشي عليه مسلمانان در اين کشور جريان دارد.

اين جنايات وحشيانه و قتل عام انسانها در مقابل چشم نيروهاي فرانسوي صورت مي گيرد که اقدام قابل ملاحظه‌اي براي حفاظت از اين افراد بي‌دفاع و مظلوم به عمل نمي‌آورند. اجساد بي‌شماري از مسلمانان اکنون در شهر "بانگي" مرکز حکومت آفريقاي مرکزي پراکنده است و هيچ مرجعي به جمع آوري و دفن آنها اقدام نمي کند.




به گزارش منابع سازمان ملل تعداد آوارگان از يک ميليون نفر فراتر رفته است. اتحاديه آفريقا و نيز آنچنانکه بايد، براي مهار بحران در آفريقاي مرکزي اقدام نکرده است که علت اصلي آن نيز فقر و فقدان انگيزه براي مداخله مي‌باشد. فرانسوي‌ها که به سبب سوابق استعماري خود را قيم آفريقا مي‌دانند و هم اکنون نيز ۱۶۰۰ نيرو به بهانه تشديد درگيري‌ها به اين کشور اعزام کرده‌اند عملاً هيچ اقدامي براي مقابله با جنايتکاران و شورشيان مسيحي افراطي در اين کشور انجام نداده‌اند. قدرت‌هاي بزرگ و مجامع بين‌المللي نيز طبق روال هميشگي و در راستاي سياست دو بام و يک هوا تاکنون

هيچ گونه قدمي براي حمايت از اقليت مسلمان آفريقاي مركزي و جلوگيري از نسل كشي برنداشته‌اند و حتي به خود زحمت نداده‌اند دست كم بيانيه و يا قطعنامه در رسيدگي به فجايع درحال وقوع در اين كشور صادر كنند و تنها به ابراز تأسف بسنده كرده‌اند .

سازمان عفو بين الملل اعتراف كرده است كه در آفريقاي مركزي پاكسازي قومي عليه مسلمانان جريان دارد و از مجامع بين‌المللي درخواست اقدام نموده است .

بسيار شرم‌آور است كه مجامع عريض و طويل جهاني با شعارها و ژست‌هاي پرطمطراق، به نظاره نشسته‌اند و گروه‌هاي جنايتكار در مقابل چشم آنها و رسانه‌هاي تحت سيطره آنها به ضدانساني‌ترين شكل مسلمانان را در آفريقاي مركزي قتل عام مي كنند .

اين مجامع بين‌المللي كه براي موارد بسيار جزيي‌تر ولي سفارش شده، اشک تمساح مي‌ريزند و براي نقض حقوق بشر سينه چاک مي كنند در برابر فجايعي كه در حق اقليت مسلمان و محروم اين كشور افريقايي صورت مي گيرد سكوت ننگيني را اختيار كرده‌اند .

اين برخورد چندان هم دور از انتظار نيست چرا كه مهاجمان و جنايتكاران، از مسيحيان هستند و بديهي است كه غرب رغبتي ندارد تا فجايع آفريقاي مركزي در مركز توجه قرار گيرد و اتفاقات جاري در آن كشور بزرگنمايي شود . غربي‌ها كه همواره كوشيده‌اند مسلمانان را به خشونت و تروريسم متهم كنند اين بار نيز قطعاً راضي نيستند تا جنايات هم كيشان آنها در مركز توجه قرار گيرد. از اينرو، انتظار اقدامات اساسي از غرب و محافل تحت سيطره آنها، بيهوده و عبث است .

در اين شرايط، وظيفه و رسالت مسلمانان و مجامع و سازمانهاي اسلامي بسيار سنگين است. اكنون اين مجامع در برابر يک آزمون ديگري قرار گرفته‌اند تا چگونگي عملكرد و اداي دين خود را در دفاع از منافع جهان اسلام در مقابل ديد جهانيان قرار دهند .

كشورهاي اسلامي اكنون وظيفه دارند به ياري مسلمانان اين كشور آفريقايي بشتابند كه به مفهوم واقعي كلمه هيچ ملجا و مدافعي ندارند و مظلومانه توسط افراطيون مسيحي وحشي قتل عام مي‌شوند .

كشورهاي مسلمان و مجامع اسلامي اكنون بايد اين وجه از رسالت ديني خود را كه تفاوتي بين مسلمانان آسيايي، اروپايي و يا آفريقايي نيست و همه آنها از يک مرتبه و ارزش برخوردار هستند، به منصه ظهور برسانند و برادران و خواهران خود را ياري رسانند .



قطعاً تعلل و سكوت در مقابل اين وظيفه انساني و شرعي به هيچ وجه قابل توجيه و پذيرفتني نيست و همانگونه كه دبير كل سازمان ملل نيز تاكيد كرده است هر روز تاخير در اقدام عملي جهت حمايت از مسلمانان آفريقاي مركزي به بهاي ريخته شدن خون دهها نفر ديگر و آوارگي شمار بيشتري منجر خواهد شد .

# ... ارتې تڼۍ هم ګرځې جانانه ! ...

الف لام

زموږ حقپال شاعر '' تراب '' هم بلاکوي دمعقولاتو تصویرپه ډېرو ښو محسوساتو وړاندې کوي، دامریکایي عسکرو جنایت او وحشت ترسره کول اوبیاترې بې باکه اوبې پروا اوسېدل یې ډېرښه انځور کړي اودغې بدماشي ته یې عام فهمه ولسي ټکي کارولي وایي '' .... چې عزت مو ترخړو موزو لاندې کړې... اوبیا ارتې تڼۍ هم ګرځې جانانه ..''

ماته دغه اصطلاح هغه وخت رایاده شوه چې تېره میاشت ملګرو ملتونو په افغانستان کې دتېر ۲۰۱۳ ز کال دولسي وګړو دوژنې راپور نشر کړ.

شایدتاته هم دغه اصطلاح اوله راپورسره تړاوېې څه بل ډول ښکاره شي، خو ډاډه یم که دپای ترلیکې راسره وې په دې تړاو به مو اتفاق سره راشي .

راپور کاږي : په تېر کال کې ټولټال ۸۶۱۵ تنه ولسي وګړي وژل شوي چې ښځې ،ماشومان اوسپین ږیري هم پکې شامل دي.

راپور په ډېر قاطعیت ۷۴ سلنه پړه پرطالبانو، ۱۰ سلنه پرحکومتي عسکرو اویوازې ۳ سلنه یې دناټو په ټولو ځواکونو اوهیوادونو وراچولې

دلته به یو واریوازې په دغه کال کې په ملکي خلکو دناټو ځواکونو له لوري دترسره شویو بمباریو په لنډډول هغه راپور راواخلو چې ځینې خپلواکه اداري یې په ښه دقت سره ترلاسه کوي بیادې ګران لوستونکي دملګرو ملتونو دراپور دسلنې دوېش قضاوت په خپله وکړي :

هو ! داهم منو چې دطالبانو په فدایي بریدونو او ماینونو کې هم تریوحده دملکي خلکو وژنې رامنځته شوې، خو په هغه اندازه چې دملګروملتونو راپور یې سلنه ښیې، له شک پرته چې دخلکو په سترګو کې خاورې اچول او حقایق ترپښو لاندې کول دي .

دجنوري پر ۱۳مه نیټه دمیدان وردګوولایت سیداباد



ولسوالۍ دتنګې درې په حسن خیلو سیمه پریوه جومات په هوایي برید کي اتلس تنه هیوادوال شهیدان او اوتردیرشوزیات ټپیان کړل، لومړی پرمسجدبمبارشوی ،خلګ له بمباروروسته له کورونوراوتلي چي شهیدان اوژوبل له خاوروڅخه راوباسي ،په دې وخت کي یوځل بیاپرجومات بمبارشوی اوبیا پلیوبهرنیواوکورنیو عسکرو هغه کسان په نښه کړل چي له کورونوراوتلل .




دفبروري پر ۲۰مه د کندزولایت د قلعه زال ولسوالۍ په صافي کوټ کلي کي دبې پیلوټه الوتکي په بمبارکي دوه تنه ولسي وګړي چي په پټي کي په کاربوخت وو ،شهیدان شوي دي

دفبروري پر ۲۱مه یرغلګرود لغمان ولایت دګل ارام سیمه کي بمبارکړی چي له امله یې لس تنه ولسي وګړوته مرګ ژوبله اوښتې ده .

دفبروري پر ۲۵مه دننګرهارولایت دحصارک ولسوالۍ په مربوطاتوکي په بمبارکي څلورتنه ولسي وګړي شهیدان شوي دي .

دمارچ پر ۹مه دننګرهارولایت دسپین غر ولسوالۍ دشډل سیمي په بازاربمبارچي له امله یې یوتن شهیداونولس تنه ملکي هیوادوال ژوبل شول.

دمارچ پر ۲۷مه دلوګر ولایت دبرکي برک ولسوالۍ په سجاوند سیمه کي په بمباراومخامخ ډزوترشل (۲۰)تنه ډیرملکي هیوادوال شهیدان کړي رسنۍ دعیني شاهدانوله خولې نقل کوي کله چي خارجي اوداخلي عسکردطالبانوله سخت مقاومت سره مخ شول او ځاني زیان ور واوښت په سیمه کي یې پراخه بمباري پیل کړه ،دعملیاتوڅخه وروسته دځینو کلیوالوجسدونه په کروندوکې په داسي حالت کي موندل شوي چي نسونه ،پوزي اوغوږونه یې ځیري شوي وو .

دمارچ پر ۲۹مه دبدخشان ولایت د وردوج ولسوالۍ په یخشیره سیمه کي ملکي استوګنځایونه بمبار،او اوه تنه ولسي وګړي پکي شهیدان شوي.

داپریل پر ۵مه د کونړولایت د شیګل ولسوالۍ په سلتن درې سیمه کي بمباري اوډزوکي دوه ویشت تنه ولسي هیوادوال دښځو ،بوډاګانواوماشومانوپه شمول شهیدان شوي دي.

داپریل پر ۱۴مه د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ په بیلابیلوسیموکي بمباري درې تنه ملکي هیوادوال دیومحصل په شمول شهیدان شوي اودرې کوچنیان ژوبل کړل .

دمۍ پر ۴مه دهلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ دشنې جامع پربازاربمبارکي، درې تنه ولسي وګړي شهیدان شوي اولس تنه ژوبل شوي دي .

دمۍ پر ۹مه دبمبارله امله دفاریاب ولایت دقیصارولسوالۍ په چیچکتو کلي کي یوماشومام اویوه ښځه شهیده شوې ده .

دمۍ پر ۲۹مه دبدخشان ولایت دغنیوپه قریه کي ددرنووسلوپه ډزواوبمبارکي یوه ښځه اودوه نارینه

شهیدان شوي اواوه تنه ملکي هیوادوال دسپین ږیرو په شمول ټپیان شوي دي ،

دمئ پر ۲۹مه دکاپیساولایت په اله ساى ولسوالۍ کي په بمبارکي پنځه تنه ولسي وګړي شهیدان شوي ،او څوارلس تنه ژوبل شوى دي .



دجون پر ۹مه د بدخشان ولایت په وردوج ولسوالۍ په غچان سیمه کي په بمبارکي دوه ماشومان شهیدان.

دجون پر ۱۲مه دبمبارله امله دمیدان وردګ ولایت دسیداباد ولسوالۍ په پټان خېلو کلي کي څلورتنه ولسي هیوادوال شهیدان اویودښونځي زده کونکى ژوبل کړى .

داګست پر ۲۹مه د پکتیاولایت د سید کرم ولسوالۍ په عثمان خېل سیمه کي دملکي خلګوپر کورونو دبمبار له امله درې تنه ملکي هیوادوال شهیدان شوي دي .

دسپتمبرپر ۱۰مه دکاپیساولایت د نجراب ولسوالۍ په غین دره کیداستوګني پرسیمه په بمبارکې یوسپین ږیرى شهیداوڅلورتنه نورولسي وګړي ټپیان شوي دي.

دنومبرپه ۲۰مه دنورستان ولایت نه د وانت وایګل ولسوالۍ په دیګل کلي کي پر یوه جنازه په بمبارکي شپږتنه ولسي وګړي ( عبدالحی، سفر، نجیب الله، نورالرحمن او اسمعیل )شهیدان شوي دي .

دنومبرپه ۲۳مه د ننګرهارولایت د خوګیاڼو ولسوالۍ دمملي په قیقوم خېل سیمه کي یو مسجد بمبارکړى او اووه تنه ولسي وګړي شهیدان شوي.

ددسمبرپه ۱۰مه د کاپیسا ولایت داله ساى ولسوالۍ په صادقانو کلي په بمبار کي اته تنه ملکي هیوادوالوته مرګ ژوبله اوښتې ده دکور څښتن '' نقشبندي '' اودرې تنې ښځې پکي شهیداني شوي اوددرو میرمنو په ګډون یوماشوم پکي ټپي شوى دى .

ددسمبرپه ۱۵مه نیټه د ننګرهار ولایت د لالپورې په سیمه کي د کابل سیند په منځ کي بې پیلوټه الوتکي پریوې ورې کشتۍ بریدکړى ، په یاده شوې حمله کي پنځه تنه ملکي هیوادال شهیدان شوي اویونامعلوم شمېرژوبل شوي دي .

ددسمبرپه ۱۵مه د لوګر ولایت د بر کي برک ولسوالۍ په احمدشاه کلاسیمه خارجي عسکرودهاوان مرمۍ اورولي، په دغه هوایې بریدکي چي یوه مرمۍ یې دخلګوداستوګني پرځاى لګېدلې دوه تنه ولسي وګړي شهیدان شوي اواووه کسه ټپیان شوي دي .

مأخذونه:[بي بي سي راډیو ،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک ،روهي ویبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=]

# سیّاف

## مبلغ کفر از آدرس اسلام !

احمد نوید

روزنامه "هشت صبح" مصاحبه ی با یکی از کاندیداتوران ریاست جمهوری خیالی آینده ترتیب داده بود که آن – به اصطلاح – نامزد، به بیان اظهارات رکیک، مذموم و ناپسند در مورد اسلام، جهاد فعلی و فرزندان غیور وطن معروف است؛ آن شخص رسول سیاف است که خود را نامزد ریاست جمهوری نموده است؛ کسی که روزگاری نه چندان دور علیه استعمار سخن می زد و عمل می کرد، کسی که تا یک و نیم دهه پیش، کفر را ملت واحده می پنداشت و جهاد در مقابل هر تجاوزگری را واجب می شمرد، کسی که با آیه و حدیث، دشمنی یهود علیه اسلام و مسلمانان را به تشریح می گرفت و ساعت ها در جایگاه یک شیخ دلسوز، امت اسلامی را از سیطره و هجمه کفار برحذر می داشت، کسی که برای بسیاری استاد پنداشته می شد و از عقل و درایت وی، راه گمشده شان را جستجو می نمودند؛ امروز اما همان شخص، (قسمیکه در تصویر فوق مشاهده می فرمایید) بجای نشَستن در مکتبه یا مسجد در اطاقی نشسته، که در جوارش نه قرآن شریف و نه بخاری شریف و یا دیگر کتب فقه و حدیث، که تلویزیون نهاده شده است، او بر خلافِ دوران جهاد سابق که ریاکارانه بر زمین خشک یا فرشِ حصیر می نشست تا بیشتر جلب توجه نموده و در نگاهِ خلق، زاهدی بی غل و غش جلوه نماید؛ امروز اما، متکبرانه بر مُبلمان حرص شهرت طلبی نشسته است و در سر هوای چوکی پادشاهی می پروراند؛ براستی که انسانهای بَدَل چه زود تغییر و تبدیل می یابند !!!

آری ! سیاف دیگر علیه استعمار نه بلکه علیه اسلام سخن می زند و عمل می کند؛ او دیگر به جهاد عقیده مند نیست بلکه بر کسانی که بر ضد دشمنان دین خدا می جنگند و مبارزه می کنند به چشم دشمن می نگرد؛ او دیگر شیخ دلسوز نیست و اگر هم هست دلش به حال هموطنان مظلومش که وحشیانه توسط قوّت های استکباری جهان بمباردمان می شوند، نمی سوزد بلکه دلش به حال صلیبی های می سوزد که چگونه در رسیدن به اهداف شوم و درازمدت شان در افغانستان ناکام مانده اند و شاهد چه روزهای ذلّت باری هستند؛ او دیگر برای رهپویان راه حق، الگو و سرمشق نبوده و نیست و استاد خطاب نمی شود؛ چون سخنانی که او از آدرس اسلام در جهت منافع غرب و کفر تبلیغ می کند، شیطان را هم شرمنده کرده و متعجب می سازد؛ او در معامله ی که با کفر انجام داد همه چیزش را از دست داد؛ عزتش، آبرویش، اعتبارش، شخصیتش، تاثیر گذاری و نفوذش و ... همه را مفت و مجانی در مقابل دنیای اندک و فانی سوداء کرد ! ...

محتوای مصاحبه سیاف در روزنامه هشت صبح ، چیزی جز کلمات تکراری همیشگی اش نبود؛ که در این مجال کوتاه ، به شکل جسته و گریخته ، قسمت هایی از این مصاحبه را ذکر نموده و به نقد و تحلیل می گیریم : او در این مصاحبه بازهم از ادبیات خصمانه و کینه توزانه کار گرفته و به نوعی در تلاشی ناکام ، سعی ورزید تا افکار عامه را نسبت به جهاد مقدس فعلی و مجاهدین غیوّر تشویه و تخریب نماید ؛ او که در دخلش چیزی جز چاپلوسی کفر و اهداف نیمه تمام و فرسوده غرب تجاوز گر باقی نمانده با وقاحت تمام ، تا می توانست علیه اسلام به تحریف پرداخت و در بخشی از مصاحبه ، جهاد فعلی مجاهدین را برداشت نادرست از اسلام تعبیر کرد ؛ در حالیکه بر خلاف شرع و موازین قدسی ، این سیاف است که تمام حرف و عملش در چوکات شریعت منطبق نیست و مثل یک اجیر حلقه به گوش ، به مبارزه و جنگ علیه اسلام عملا اقدام می نماید ؛ او در جایی از مصاحبه به اشغال و تجاوز امریکا و غرب رنگ مشروعیت داده و به فیصله نام نهاد ملل متحد اشاره کرده است ؛ در حالیکه به حکم صریح قرآن و نصوص فقهی ، جهاد در مقابل متجاوزین یک فریضه خوانده شده و هیچ فیصله ی نمی تواند در مقابل فیصله حق در کلام جاویدانش، تبارز کند ؛ سیاف چرا اعمدا غفلت می ورزد و چشمانش را بر صدها آیه جهاد و شهادت می بندد و تعمدا با اسلام و مسلمین عناد می ورزد ؛ آیا واقعا تا این حد فیصله سازمان ملل در مورد افغانستان مهم و حیاتی بوده که - العیاذ بالله - احکام روشن الهی پیرامون مسایل قتال و مبارزه علیه کفار نادیده گرفته شود ؟؟؟

سیاف در بخشی از مصاحبه گفته ، در صورتی که پیروز انتخابات شود بطور حتم به اعمال قانون می پردازد ؛ جای پرسش اینجاست که کدام قانون ؟ قانون قرآن !یا قانون غرب ؟ قانون قرآن که ظاهرا دیگر انتظار نمی رود فردی مثل سیاف دنبال نفاذ شریعت و قانون خدا باشد و بالفرض اگر باشد غرب و بادارانش نمی گذارند ؛ و اگر منظور وی قانون غرب باشد که ظاهرا نیز چنین است باید بداند که وقتی اربابانش با تمام زور و جبری که بکاربستند نتوانستند بر سر این سرزمین و مردمش به شکل دلخواه شان ، قانون کفری را تحمیل نمایند بدون شک سیاف و امثالش نیز نخواهند توانست بر خلاف قانون قرآن ، دیگر قانونی را در این سرزمین پیاده کنند ؛ و اگر قانون قرآن پیاده شد نخستین افرادی که به حکم آن قانونِ مقدس، محاکمه و به پنجه عدالت سپرده خواهند شد سیاف و امثالش می باشند که با گفتار و کردارشان بزرگترین خیانت ها و جنایت ها را در حق اسلام و مسلمین مرتکب شدند !؟!

سیاف ، در بخشی دیگر از اظهاراتش در این مصاحبه ، وابستگی افغانستان به جامعه جهانی را یک ضرورت خوانده و به دنیا حیثیت فامیل داده است (!!!) مطلقا منظور سیاف از دنیا جامعه کفری می باشد و منظورش از ضرورت نیز، ادامهء راه غلامی و بردگی است که وی در جهت تداوم این راه شوم و نامیمون با کمال میل کمر بسته است ؛ نکته جالب اینجاست که جامعه کفری برای سیاف حیثیت فامیل دارد از همین جهت مناسب است از سیاف پرسید که شما در این فامیل چه کاره هستید نکند که ... !؟!

او در ختم مصاحبه، بطور تلویحی به عشق و علاقه وافرش به شهرت و جاه طلبی اشاره نموده و با شوق زدگی تمام گفته : "من پیش از اینکه به ثبت‌نام بروم، این فکر را کرده بودم که خود نامزد شوم مناسب تر است تا اینکه از کدام نامزد دیگر حمایت کنم. در آن هنگام فکر ما این شد که خود باید وارد میدان شوم و من این فیصله را در همان وقت کردم" در حالیکه در مصادیق شرعی به وضاحت از مقام طلبی منع شده است !...

# د ژبې ازار ...

دبشیر ژباړه

په حدیث شریف کې دوه لفظه راغلي دي، یو "من لسانه" بل "ویده" یعنې ستا له ژبې اولاس دواړوڅخه به مسلمان په امن او خوندي وي، بل سړی څنګ له ژبې خوندي کیدای شي؟ له ژبې نه داسي کلمې نه ویستل چې داوریدونکي زړه ته صدمه او ازار رسوي، یا دهغه دزړه بدوالي سبب کېږي.

که بلفرض دکوم مسلمان په کومه خبره تنقید کولو ته اړتیا وه، بیا هم پکار ده چې داسي الفاظ ونه کارول شي، چې دهغو په لوستو یا اوریدو دهغه سړي زړه ازارېږي!

مثلاً: تنقید کولو کې داسي تعبیر وکړي.... ستا! فلانی خبره مي خوښه نشوه... که ته! په خپله بیا غور وکړي.... داخبره داصلاح وړده... دشریعت سره سمون نه لري... داسي لهجه یا الفاظ راوړل څو دهغه زړه ټپي نکړي، کنځلو ته ورته الفاظ یا ترخه لهجه غوره کول ستا دمخاطب سړي زړه ته ټکان ورکوي... هغه پرې خفه کېږي... ځیني بیا ددي څخه یو ګام وړاندې درومي له طعنو ورکولو نه کار اخلي ...دا ټول هغه څه دي چې زړونه ټپي کوي...او دعربې دیو شاعر شعر دی:

جراحات السنان لها التیام
و لا یلتام ماجرح اللسان

یعنې دنیزې زخم جوړیږي، خو دژبې زخم نه، که یوه تن ته دبل چا خبره خوښه نه وي، صفا او په ښکاره دي ووایي: ستا! فلانی خبره ځما خوښه نده، په عظیم الشان قرآن کې ارشاددی:

اې دایمان خاوندانو! دالله نه وډار شئ خبره نېغه کوئ!

نن سبا عموما جمله بازې یا فقره بازې یوفن ګرځیدلي، یعنې داسي خبرې له خولې ویستل دود شوي چې په اوریدو یې مخاطب سړی خامخا خجله او حیران پاته شي، په اشاره اوکنایه لفظونو دنورو دزړونو ازارولو ته دهنر اوفن په سترګه کتل کېږي، دداسي خلکو تعریفونه کېږي شابسي ورکوي.

په ژبه چېچل:

ځما درانه پلار مولانا محمد شفیع رحمة الله علیه به ویلی: دځینو کسانو ژبه کې دزهرو غوندې اثر وي او پرې چېچل کوي، په طعن اوطنزیه لهجه غږېږي او نیوکې کوي، حال داچې دغږېدادغه انداز ښه ندی، هغه کېسه کوله: یوه ورځ یوسړی دیوه خپل کره لاړو، هلته دکوربه انګورډېره غوسه وه او خپلې خواښې ته په بدو ردو ویلو سروه، له خواښې وپوښتل: ستا انګور ولې په غوسه ده؟ هغې ویل: چا ورته څه نه دي ویلي، یواځې ما ورته دوه خبرې وکړې، په هغو غوسه ده اولکه دډمې لګیاده ګډیږي... هغه وپوښتل: ستا په کومو دوه خبرو؟ وې ویل: بس دومره مې ورته وویل: ستا پلار غلام دی او موردې وینزه ده!! له دې وروسته ده لګیاده غاپي ...

اوس ګوره! دوه خبرې دې، خو داسي دوه خبرې چې دانسان دتن دننه اور اچوي! له دې وجې طعنې ورکول کورونه ورانوي، په زړونو کې کرکې او نفرتونه زیږوي.

لومړی سوچ بیا خبرې:

په ژبه دخبرې راوړو څخه وړاندې سوچ ته اړتیاده، کومه خبره چې زه غواړم هغه دخولې نه وباسم، نتیجه به یې څه وي؟ په هغه سړي به څه ډول اغیز ولري؟ او داسوچ پکاردی چې زه کومه خبره دفلاني سړي په باره کې کوم، که هغه داخبره ځما په حق کې وکړه، په ما به یې تاثیر څه ډول وي؟ ښه به وي که بد؟ رسول الله (ﷺ) مونږ ته په دې اړه تعلیم په لاندې ډول راکړی:

احِبَ للناس ما تُحِبُ لِنَفسِکَ یعنې دنورو لپاره هم هغه خوښوه کوم چې دځان لپاره خوښوې.

خو مونږ جلا، جلا پیمانې لرو، دځان لپاره یوه او دبل لپاره بله، رسول الله (ﷺ) ددې توپیر پای اعلان کړ، که زمونږ په زړونو کې دا ترازو پیدا شوه په دې سره به ټولې جګړې پای ومومي.

ژبه لوی نعمت ده:

ژبه دالله (ﷻ) خورا لوی نعمت ده، چې الله مونږ ته راکړې، دپیداینښت نه تر مرګه داما شین خپله روان وي، خدای مکړه که دانعمت له چا واخستل شي، یا دفالج په وجه ژبه بنده شي، هغه وخت ایله دژبې قدر معلومیږي، چې خبرې کول او دژبې خوځښت څومره لوی نعمت دی؟ او مونږ له سهاره تر ماښامه دقیقې پشان چلوو خو سوچ مو ونکړ، چې څما له ژبې نه کوم الفاظ وځي، دا سم نه دي، ښه داده چې هر سړی لومړی تول بیا خبرې، که مونږ په دې عمل وکړو ان شاء الله جنت ته دتلو اسباب به ومومو!

په سوچ دخبرو عادت:

په یوه حدیث کې رسول الله (ﷺ) فرمایلي: جهنم ته دبیولو لوی سبب ژبه ده.

که ژبه دخیر لپاره په کار واچول شوه، نو جنت ته دتلو لار ده او که دشر اوناروا وو ترې کار واخستل شو نود جنهم لار ده، نو اړتیا ده چې مونږ په سوچ او تفکر سره له ژبې کار واخلو لومړی سوچ وکړو بیا خبره په ژبه راوړو.

په دې سره داسوال پیداکیږي، چې ددې مطلب خو دادی چې سړی دهرې خبرې لپاره اول سوچ کوي بیا دهغه وروسته دې خبره یا جمله په ژبه راوړي، په دې خو زیات وخت ضایع کیږي؟ اصلي خبره داده که یو سړی ځان داسې روږدی کړ چې دخبرو پرمهاله له سوچ کار اخلي، کرار کرار به یې عادت شي، بیا هغه د سوچ په کولوکې دځنډ سره نه مخ کیږي، هغه په یوه لمحه کې هم پریکړه کولی شی، چې داووایم کنه؟ بیا ددې لپاره الله (ﷻ) دانسان په ژبه کې داسې ترازو ایښې چې په هغه دښو اوبدو تمیز خپله کیږي، دهغه له ژبې نه یوائې دحق خبرې وزي، دناسمو خبرو وتل ناشونی وي، داکار دالله (ﷻ) درضا سبب ګرځي، اوهم نورو ته دتکلیف رسولو سبب به نه وي، په دې شرط چې دا احساس پیداشي چې دالهې ماشین په ځای او خبلو ادابو سره یوځای چلول پکار دي.

کافر ته په ژبه تکلیف رسول:

رسول الله (ﷺ) په دې حدیث کې فرمایلي: مسلمان هغه دی چې دهغه دلاس اوژبې نه بل مسلمان خوندې پاته وي، له دې څخه ځینې خلک دافهموي چې دلته یوائې مسلمان دتکلیف نه رسولو حکم شوی، کافرانو ته پکې دتکلیف نه رسولو حکم نشته، خو دا انګیرل سم ندې، دلته دمسلمان ذکر په دې وجه شوی چې مسلمان په کوم ماحول کې ژوند کوي هلته عموماً هغه دمسلمانانو سره مخ کیږي، له دې وجې په خاصه توګه دمسلمان یادونه شوې، کنه داحکم چې دمسلمان او نامسلمان دواړو په اړه دی، چې دهیڅ مسلمان لپاره دامن په حالت کې نامسلمان ته تکلیف رسول جوازنه لري، البته که دکافرانو سره دجنګ حالت و، او جهاد روان و، بیا دکافرانو دشان اوشوکت ماتولو په نیت هغوئ ته تکلیف رسول جوازلري، خو له کومو کافرانو سره چې دجنګ حالت نه وي، هغوئ ته تکلیف رسول ددې حکم لاندې راځي.

وعده ماتول...

ځینې کارونه داسې وي چې ډیرو ته هغه تکلیف رسول نه برېښي حال داچې هغه په ژبه د تکلیف رسولو په حکم کې راځي، مثلاً: دوعدې ماتول او ترې سرغړونه هغه عمل دی چې په دې سره بل ته اذیت او تکلیف رسي، که یوتن دبل سره دا وعده وکړه زه ستا فلانی کار په فلانې وخت کوم، لیکن په هغه وخت ونه کړ، په دې سره یې هغه سړي ته تکلیف ورساوه، نو دوعدې ماتول او ترې وروسته کیدل هم بل سړي ته داذیت او تکلیف رسولو پشان ګناه ده، ترې اجتناب ضروري دی.

په تلاوت کونکي سلام:

ځیني وخت انسان داګومان هم نه ورځي چې زه په ژبه باندې تکلیف رسوم، بلکې هغه داسې فکر کوي چې زه دثواب کار کوم، لیکن حقیقت کې هغه دګناه کار کوي اودژبې له لارې نورو ته تکلیف

رسوي، مثلاً: سلام اچول ښو مره لوی ثواب او فضيلت لري، خو شريعت دنورو دتکليف ته په خيال لرلو، دسلام اچولو لپاره هم ځايونه او مقررات ټاکلي اوهر وخت سلام اچول جواز نه لري، بلکې په ځينو ځايونو کې سلام اچول دثواب په ځای دګناه سبب کېږي، لکه يو سړی په تلاوت لګيادی، په هغه سلام اچول روانه دي، ځکه په سلام اچولو سره دهغه په تلاوت کې ځنډ او خلل راتلای شي، که تا په هغه سلام واچاوه ، هغه به تلاوت بندوي، ستا په لور به متوجه کېږي، په دې سره به هغه ته تکليف رسي، هم داشان هغه خلک چې په مسجد کې په ذکر اذکارو لګياوي په هغوئ هم دسلام اچول جايزندی، لې چې هغوئ دالله ( ﷻ ) په ياد کې مشغول وي، دالله لورته زړونه متوجه کړي وي ، ژبه يې په ذکر کولو مشغوله وي، ستا دسلام په کولو سره دهغه پام کې خلل راځي، تا ته دځواب په ويلو تکليف محسوسوي.

په مجلس سلام:

فقهاوو ليکلي: که يوسړی نورو خلکوته اوږدې خبرې کوي اونور دهغو خبرو ته په تو جه سره غوږ وو، په دغسي حالت کې هم سلام اچول جواز نه لري، اګر که هغوئ دونياوي خبرې هم کوي، په دې حالت کې سلام اچول رواندی، ولې هغه خلک دخبرې اوريدو ته متوجه دي، تا په سلام اچولو سره په هغو کې خلل واچاوه او روان مجلس يې تا بيخونده کړ له دې وجې حکم دادی چې کله تاسي کوم مجلس يا غونډې ته ځي نو هلته که خلک په خبرو لګياوي، هلته ته دسلام پر ته کينه، ددې څخه تاسو معلومه کړئ چې شريعت په دې باره کې څومره حساس دی، چې بل تکليف بايدونه رسي.

په ډوډۍ خوړونکي سلام:

که يوڅوک ډوډۍ خوري، دغه مهال هم اګر که سلام اچول حرام نه خو مکروه ضروردی، اوس ګورئ! ډوډۍ خوري، عبادت نه کوي نه په ذکر لګيادی، که ته سلام واچوي په هغه غر نه رانړيږي، خو دسلام اچولو په وجه هغوئ اندېښمن کېږي، دبده منلو او خفګان انديښنه ده له دې وجې تاته سلام اچول نه دي پکار ، هم داشان تليفون که يوتن غواړي له بل چا سره اودې خبرې وکړي ، ددې لپاره بايد له هغه نه اجازه وغواړي، که هغه ورسره اومنله، بيا کوم باک نه لري دهغه دجازي پر ته اوږدې خبرې هم دژبې له لارې دتکليف رسولو په ازار کې راځي ترې پر هيز پکاردی

په ورته تو ګه دلاسپيکر استعمال! که په يوجومات کې دمسجد ددننه لاسپيکرونه اوازرسولو لپاره کفايت کوي، دباندې لاسپيکرونه لګول هم خلکو تکليف رسولو حکم لري ولې په دغه مهال کې څوک به کور کې تلاوت کوي... ذکر به کوي... څوک به ناروغ وي... ارام به کوي... تا په ټولو خپل وعظ جبراً مسلط کړ، چې دژبې له لارې ازار او اذيت په معنی دی، ترې ډډه پکار ده.

دحضرت عمر (ﷺ) په زمانه کې يو سړی به راته نبوي مسجد کې به يې وعظ کاوه، هغه وخت لاسپيکر نه و، خو دهغه غږ ډېر لو ړو، ترې لري اوريدل کيده او دحضرت عايشه (ﷺ) حجره هم دمسجد سره متصل وه ، دهغه واعظ اواز به دهغې په مصروفياتو کې خلل اچاوه، له دې وجې يې حضرت عايشه (ﷺ) حضرت عمر (ﷺ) ته دشکايت خبر واستاوه، حضرت عمر (ﷺ) هغه سړی طلب کړ، او ورته يې وويل: ستا له اواز نه ام المومنين ته تکليف رسي، ته خپل وعظ دلته بند کړه بل ځای يې کوه، هغه څو ورځې بند شو ليکن موده پس يې بيا وعظ شروع کړ، حضرت عمر (ﷺ) دويم ورغوښت او ورته وي ويل: زه تاته په وروستي ځل وايم چې هلته وعظ بند کړه که بيا دې هم سرغړونه وکړه دا لرګی به ستا په سر ماتوم يعنې دومره به دې چې څو دا لرګی مات شوی نه وي.

# غروب نظامی آمریکا و اروپا

کشورهای بزرگ اروپایی برای مقابله با مشکلات اقتصادی همچنان به‌صورت مستمر در حال کاهش نظامیان و تجهیزات نظامی خود هستند و تلاش می‌کنند که هزینه‌های هنگفت سال‌های قبل تکرار نشود. آمریکا هم برای مقابله با مشکلات اقتصادی برنامه سختی برای کاهش بودجه نظامی خود دارد. براساس برنامه تعیین شده تا سال ۲۰۱۹ تعداد نیروهای نظامی این کشور ۱۰۰ هزار نفر کاهش پیدا خواهد کرد. ارتش آمریکا در حال حاضر ۵۲۸ هزار سرباز دارد اما تا سال ۲۰۱۹ این رقم باید به ۴۲۰ هزار نفر برسد. این کاهش تعداد نیروهای نظامی فقط بخشی از کاهش ۵۰۰ میلیارد دلاری بودجه نظامی آمریکا خواهد بود.

روزنامه یواس‌ای تودی گزارش داده که جنرال ریموند اودیرنو، رئیس ستاد کل ارتش آمریکا به تازگی در جلسه‌ای محرمانه هشدار داده که با این کاهش نیرو، نیروهای نظامی آمریکا برای شرکت در جنگی احتمالی و دفاع از این کشور کافی نخواهند بود و این کشور با ریسکی بزرگ روبه‌رو می‌شود. یونان، اسپانیا، ایتالیا، ایرلند، بلژیک، انگلیس، هلند و فرانسه ازجمله کشورهای اروپایی هستند که طی سال‌های گذشته بودجه و نفرات نظامی خود را بین ۱۱ تا ۲۶ درصد کاهش داده‌اند.

انگلیستان به‌عنوان متحدی که همیشه در کارزارهای نظامی همراه آمریکا بوده قرار است تا سال ۲۰۲۰، ۲۰ هزار نیروی نظامی خود را کم کند تا مخارج دولت این کشور کاهش پیدا کند. رابرت گیتس، وزیر دفاع سابق آمریکا به تازگی در گفت‌وگویی با بی‌بی‌سی هشدار داد که این کاهش بودجه شدید از سوی انگلیس ممکن است توان نظامی این کشور را به حدی کاهش دهد که دیگر نتواند نقش متحد را در عملیات نظامی برای آمریکا ایفا کند. گیتس ضمن آنکه از کاهش بودجه نظامی کشورش انتقاد کرد تأکید داشت که برنامه انگلیسی‌ها آن‌قدر برای کاهش بودجه شدید است که برای نخستین بار از جنگ جهانی اول این کشور هیچ ناو هواپیمابر در حال ماموریتی در اختیار نخواهد داشت. تا سال ۲۰۲۰ شمار اعضای ارتش انگلیس ۲۰هزار نفر کاهش می‌یابد و ارتش این کشور، ارتشی کوچک و ۸۲هزار نفری خواهد بود.

براساس گزارش بودجه دفاعی کشورهای جهان که توسط نشریه نظامی جینز منتشر شده خرید تسلیحاتی کشورهای خاورمیانه هم افزایش داشته و همچنان بیشتر هم می‌شود. به‌عنوان نمونه بودجه نظامی عربستان در طول ۱۰ سال گذشته ۳ برابر شده است.

هروه مورین، وزیر دفاع وقت فرانسه ۲ سال قبل اعلام کرده بود که ادامه این روند باعث خواهد شد در ۵۰سال آینده کشورهای اروپایی دیگر نتوانند با رشد قدرت‌های نوظهور نقشی در صحنه بین‌المللی داشته باشند و باید تحت حمایت کشورهای دیگر قرار بگیرند؛ مسئله‌ای که حالا به خوبی در میان آمار و ارقام مشاهده می‌شود. پیش‌بینی‌ها نشان می‌دهد که هزینه‌های دفاعی چین تا سال ۲۰۱۵از آلمان، انگلیس و فرانسه بیشتر خواهد شد. یکی از دلایل فروش تسلیحات شرکت‌های روسی هم برنامه گسترده توان نظامی این کشور تا سال ۲۰۲۰ با بودجه بیشتر از۷۰۰ میلیارد دلار است. برای شرکت‌های روسی که افزایش فروش را در همین دوره تجربه کرده‌اند مهم‌ترین خریداران چین و ونزوئلا بوده‌اند.

نگارش( ع هـ )

# دبیروت قصاب او عبرتناک انجام یې

حسن مومند

د ۸ کلونو راهیسې دکوما په حالت کې پروت یانې په زنکدن کې اخته داسرائیلو پخواني لومړی وزیر ایریل شارون چې دبیروت دقصاب په نوم یې شهرت درلود په دروان کال ۲۰۱۴م دجنورۍ په ۱۱ نېټه ومړ.

په ۲۰۰۶ کال کې پرهغه یو داسې نامعلوم مرض ناڅاپي حمله وکړه چې هغه یې دکوما حالت یازنکدن ته یوړو بیا دهغه دعلاج لپاره دلویو ډاکټرانو ګومارل شوې ډلې ددې حالت نه دهغه دراویستلو لپاره په تېرو ۸ کلونو کې ډېرې زیاتې هڅې وکړې خو نه دهغه حالت ښه شو او نه هم ډاکټران دهغه په اصل مرض پوه شول، بس ډاکټران یوازې پدې پوه شول چې دهغه په دماغو ګوزڼ حمله کړېده چې ددې لپاره ډاکټرانو څو ځلې جراحي عملیات وکړل یوځل خو ددماغو نه دوینې دجریان یا د Blood Vessels دودرولو په موخه ډاکټرانو دهغه ۷ ساعته اوږده جراحي عملیات هم وکړل خو هیڅ ګټه یې ونکړه.

ایریل شارون چې په ۱۹۲۸ کال کې په تل ابیب کې زیږېدلی و پلار یې صموئیل شایزمین او مور یې ډاوورا نومېده، صموئیل دشرقي اروپا پولینډ نومې هېواد په یوې داسې غریبې کورنۍ کې نړۍ ته سترګې غړولې وې چې په خپل عمر یې چرته په مړه خېټه ډوډۍ نه وه خوړلې، زیاتره به ترورځو ورځو وږی ګرځېدلو ؛صموئیل په خپل ژوند کې ډېر تنګ و خو هیڅ چاره نه ورتله؛ یوه ورځ یې دخپلې پلرنۍ یهودي قبیلې ,, اشکنزای،،دیو ربی (دیهودو مذهبي مشر )سره لیدل وشول او چې دخپل فقر شکایت یې ورته وکړ نو هغه ورته دفلسطین خاورې (چې یهودان یې ارض موعود بولي) ته دتللو مشوره ورکړه صموئیل دخپل مذهبي مشر خبره ومنله او نېغ تل ابیب ته نېږدې په ,, کفار ملال،،نومې سیمې کې مېشت او هورې یې دزراعت یا کرکیلې په کارونو کې مصروف شو؛ دلته دصموئیل دیوې روسي نژادې ډاوورا نومې یهودۍ مېرمنې سره دوستي جوړه شوه چې بالآخره دا دوستي ددواړو ترمنځ په واده بدله شوه اودواده نه پس دواړو په شریکه دفلسطینیانو په ځمکو کې دهقاني ونیوله؛ په ۱۹۲۶ کې ددې دواړو یوه لور پیدا شوه چې یهودیت نوم یې پرې کېښود او ورپسې ۲ کاله پس یې د ۱۹۲۸ کال دجنورۍ په ۲۶مې نېټې زوی وشو چې ایریل شارون نوم یې پرې کېښودلو.

دعثماني خلافت دسقوط نه پس فلسطین دبرتانوي امپراتورۍ تراشغال لاندې راغلو چې ورسره سم پرفلسطیني مسلمانانو دظلمونو او دنړۍ دګوډ ګوډ نه دفلسطین خاورې ته راغلو یهودیانو ته دهر ډول دامتیازاتو دورکولو لړۍ پیل شوه؛ برتانوي دولت دفلسطینیانو ټولې ځمکې یهودیانو ته ورکړې چې صموئیل هم پدې لړ کې په سونو جریبه ځمکه غصب کړه؛ داچې دصموئیل لور یهودیت دخپل یو پولنډي ملګري ډاکټر صموئیل منډل سره په خپل سر په ۱۹۵۱ کې امریکا ته تللې وه نو مور او پلار یې پرې سخت خفه وو، پلار یې هغه عاق ،دخپلو ملکیتونو نه بې برخې او شارون یې دخپلې ټولې ځمکې قانوني مالک وګرځاوه چې دفلسطیني مسلمانانو نه په همدې غصب شوې ځمکې په سونوجریبو کې بیا شارون دخپل ځان لپاره یوه کلا جوړه کړه دا کلا یو ستر ژوبڼ لري چې شارون ورته دنړۍ دهر ګوډ نه مرغان او وحشي ځناور راوړېدي.

شارون لا له کوچنیتوبه دشر خوښونکی او قاتل مزاج څښتن و، عمر یې ایله ۱۴ کلونو ته رسېدلو چې په فلسطین کې دمېشتو یهودو په ,,ا کاغانات،،نومې خفیه وسله غورځنګ کې یې غړیتوب اخستی و ؛دا هماغه غورځنګ و چې دغاصب اسرئیلي دولت داعلان نه پس دصهیوني فوځ بنسټ وګرځېد ؛ دې غورځنګ په ۱۹۴۸ کې داسرائیلي دولت دقیام پرمهال په زرونو او اردني فوځیان فلسطینیان شهیدان کړي وو؛ دفلسطین په شمال لد ښار کې په جوماتونو کې په پناه اخستونکو عربو مسلمانانو باندې په مخامخ ډزو کونکو کې هم شارون شامل و چې دا ودده ملګرو په یوې ورځ کې ۴۲۶ فلسطینیان په ډزو شهیدان کړي وو چې دهمدې ځای نه دشارون په لاس دمظلومو فلسطیني مسلمانانو دعامه وژنې لړۍ پیل او تر ۲۰۰۵ پورې یې دوام وکړ.

شارون چې دتل ابیب عبراني پوهنتون دتاریخ او قانون له څانګې فارغ شوی و او بیا یې دحقوقو پوهنځي لوستی و؛ درشتې په لحاظ فوځي نه و خو دا چې ملکي دندې کمې ترسره کړې وې او دعمر

ډېره برخه یې په فوځ کې په خدمت کې تېره کړې وه نو ځکه فوځي ګڼل کېدلو او په فوځیانو کې هغه فوځي چې دفلسطیني او نورو ګاونډیو عربو بې ګناه مظلومو مسلمانانو وژلو سره مینه یې په رګ رګ کې نښتې وه، دهغه خپلو فوځي ملګرو به ویل چې شارون دلیونتوب ترحده ددښمن پرضد دجنګ کولو او زور کارولو طرفدار و، داسرائیلو دفوځ پخواني تړول افسران وایي چې دشارون همدې جنون په ۱۹۵۶ کې دسویس جنګ پرمهال په یوځل ۴۰ اسرائیلي فوځیان دهلاکت کندې ته غورځولي وو؛ پدې جنګ کې چې شارون د ۲۰۲ غنډ مشري کوله خپله فوځي ډله یې ډېره وړاندې د ،، متلاپاس،، ترمقامه ورسوله چې عربو فوځونو پرې سخت بمبار وکړ، دشارون په شمول ددې ډلې نور افراد خپل زوړ ځای ته په تېښتې بریالي شول خو دشارون دقوماندې لاندې ۴۰ فوځیانو پدې بمبار کې خپل ژوند له لاسه ورکړ.




دشارون دا جنون که یو ځل دخپلو ۴۰ فوځیانو دهلاکت سبب شوی و نو بې شمېره ځل دزرونو یاسونو بې ګناه فلسطینیانو دقتل سبب وګرځېد؛ لکه چې دمخه مو وویل چې دخپلو ملګرو سره یوځای شارون په ۱۹۴۸ کال کې دفلسطین په شمال کې په جوماتونو کې پناه اخستونکي ۴۲۶ بې ګناه عام فلسطینیان وژلي وو؛ په ۱۹۵۳ کې یې داردن په سرحد ،،قبیه،، نومې سیمه کې ۱۸۰ بې ګناه اردنیان په ډزو وژلي وو، د ۱۹۶۷ جنګ کې چې څومره دمصر ولسي وګړي اسرئیلي فوځیانو نیولي وو ټول شارون دسکنجو نه پس په ډېرې بې دردۍ ووژل؛ دشارون په لمن په زرونو تورو داغونو کې ترټولو جور داغ په لبنان کې دفلسطیني مهاجرینو په صابره او شتیلا کمپونو کې دمهاجرو فلسطینیانو قتل عام دی.

په ۱۹۸۲ کې چې شارون داسرائیلو ددفاع وزیر و نو دلبنان دجنګ پرمهال یې خپلو فوځیانو ته حکم کړی و چې دلبنان دعیسوي ملیشې سره دې یوځای په یادو دواړو کمپونو کې مسلمانان ووژني، اسرائیلي فوځیانو او په لبنان کې عیسوي مسلحو ډلو په صابره کې ۴۶۰ او په شتیلا کې ۳ زره او ۵ سوه نه زیات فلسطیني مهاجرین شهیدان کړل؛ دقتل عام دې ستړې پېښې اسرائیل په نړۍ کې دومره بدنام کړل چې له امله یې په اسرائیلو کې دننه هم دشارون پرضد کرکه او مخالفتونه رامنځته شول او دشارون نه د ۱۹۸۳ نه تر ۱۹۸۴ پورې دیو کال لپاره دوزارت ټول واک واخستل شو چې پدې موده هغه بې واکه وزیر و؛ بیا ترې ددفاع وزارت واخستل شو خو سمدستي ورته دسوداګرۍ او صنعت وزارت ورکړل شو چې د ۱۹۸۴ نه تر ۱۹۹۰ پورې دهمدې وزارت وزیر و؛ د ۱۹۹۰ نه تر ۱۹۹۲ پورې دکورونو او ښارونو جوړونې وزیر و؛ د۹۰ یمې لسیزې په وروستیو کې په ،، لیکوید،، نومې سیاسي ګوند کې شامل او دلومړۍ کرښې له مشرانو څخه یې ګرځېدلی و چې په پارلماني انتخاباتو کې دهمدې ګوند له لورې د ۲۰۰۱ کال په مارچ کې داسرائیلو پولسم لومړی وزیر وګرځېد او تر ۲۰۰۶ پورې په همدې منصب پاتې شو.

دا چې په اسرائیلي مشرانو کې شارون یواځینی هغه مشر و چې ترټولو زیات فلسطینیان یې وژلي وو؛ دفلسطینیانو په اړه یې موقف ترټولو سخت و؛ دفلسطینیانو سره دسولې او داسرائیلو په څنګ کې دازاد فلسطیني دولت د وجود سخت مخالف و؛ دمسجداقصی دشهیدولو او پرځای یې دهیکل سلیماني د جوړولو سخت هیله مند او ددې پلان دعملي کېدو سخت طرفدار و نو په اسرئیلو کې ستر اتل او نجات ورکونکی ګڼل کېدلو او دا چې داسرائیلو پولو ته په پراختیا ورکولو او دفلسطیني مسلمانانو په کورونو ورانولو او پکې دیهودي ناقلینو لپاره دکورونو جوړولو کې یې ساری نه درلودلو نو په اسرائیلو کې یې په بلډوزرهم شهرت موندلی و.

الله تعالی دې سفاک انسان ته دخپلو ظلمونو یو څه سزا په دنیوي ژوند کې هم ورکړه؛ شارون چې دمارګلیټ نومې مېرمنې سره په ۱۹۵۳ کې واده وکړ په ۱۹۵۶ کې یې ترې ځوئ پېدا شو چې نوم یې ورته ګورشارون کېښود؛ مارګلیټ په ۱۹۶۲ کې دتل ابیب نه مقبوضه بیت

المقدس ته راتله چې په لار کې په يوې ترافيکي پېښه کې مړه شوه، شارون په ۱۹۶۴ کې دمارګليټ دخور ليالي چې وروسته په ليلى مشهوره شوه سره واده وکړ، په ۱۹۶۷ کې دشارون ځوئ ګورشارون دشارون په ټوپک لوبې کولې؛ شارون خپل ځوئ په کور کې دننه په ټوپک دلوبو کولو نه منع کړ ګور د ګاونډي کور ته ټوپک يوړو چې هورې دخپل ملګري سره په لوبو کې په همدې ټوپک ولږېدلو او ۱۱ کلونو په عمر کې ومړ؛ دشارون مېرمن ليلى چې دوه ځامن عومرشارون او ګيلاد شارون يې زېږولي وو په ۱۹۹۹ کې په سرطان اخته شوه چې دامرض په څو ورځو کې دهغې دمړيني سبب وګرځېد.

خو دشارون ۸ کلنه اوږده مريضتيا او پکې اوږد زنکدن يا دکوما حالت په دنيوي ژوند کې دخداى له لورې شارون ته ستره سزا وه چې په پاى کې يې همدا دمرګ سبب او داسرائيلو دا بلډوزر يې داسې بلډوز کړ چې دهر ظالم لپاره دعبرت درس شو.

داسرائيلو دولت هغه ته دمرګ او مرض نه دنجات ورکولو خپل ټول کوښښونه وکړل، په اسرائيلي رسنيو کې دشارون په اړه په خپرو شوو راپورونو کې راغلي چې دشارون دعلاج لپاره به هر کال د دولتي بوديجې نه ۴۴۰ ميليونه ډالر ځانګړي کېدل خو بيا هم هغه ته نجات ورنکړى شو دهغه زنکدن ډېر اوږد يانې ۸ کلونه ونيول، نه هغه مړ کېدلو او نه هم رغېدلو، دهغه دبدن دننه په ټولو غړو چينجي مسلط وو، دبدن نه به يې ډېر زيات بدبوى تللو خو بيا هم هغه ته مرګ نه راتللو، داسې ښکارېده چې هغه به په خو راډېر زيات تکليف کې و خو هغه دخپل تکليف اظهار نه شو کولاى.

قدرت خو شارون ته دخپلو کړنو يو څه سزا په دنيا کې ورکړه خو متأسفانه چې دزرونو بې ګناه انسانانو دې قاتل دنړۍ دعدل په يوې محکمې کې هم دخپل کوم جرم سزا ونه لېدله؛ که کوم مسلمان مشر بانډې ديو يهودي يا عيسوي دوژلو جرم ثابت واى نو هغه به تروريست او دنړيوال عدل ټولو محاکمو ته مطلوب واى خو په سونو پېښو کې چې دشارون مجرم کېدل ټولې نړۍ ته ثابت و، داشخاصو او دبشر دحقوقو دکوچنيو ډلو له لورې په کابو ټولو نړيوالو محاکمو کې هغه ته دسزا غوښتنه شوې وه بيا هم هغه نه جنګي مجرم شو، نه ورته دتروريست لقب ورکړل شو او نه هم هغه په نړيوالو محاکمو کې کومې ته دمجرم په صفت حاضر کړاى شو؛ دشارون په ژوند کې يواځې يو ځل په ۱۹۸۷ کې دامريکا ټايمز،، ورځپاڼې په خپل يو راپور کې هغه دلبنان په صابره او شتيلا مهاجر کمپونو کې دزرونو فلسطينيانو دقتل عام اصل مسئول ګڼلى و، شارون ددې راپور په اړه خپل ډېر قهر ښکاره کړ؛ دورځپاڼې پرضد يې دامريکا محاکمو کې دعوى دائره کړه او ورنه يې دده دبدنامه کولو په سر دلوى تاوان غوښتنه وکړه دامريکا ددولت او په امريکا کې بااثره يهودو دفشار له امله د ټايمز،، اداري دخپلې دې ليکنې په اړه دشارون نه بښنه وغوښته چې ورسره شارون هم دتاوان غوښتلو نه تېر او محاکمو نه يې خپله عريضه بېرته راواخسته.

د ۲۰۱۴ دجنورۍ په ۱۱ مې نېټې چې داسرائيلو دولت دشارون دمړينې اعلان وکړ نو دولت او اسرائيلي رسنيو تمه لرله چې په ټول هېواد کې او دهېواد نه بهر په ټولو يهودو او ديهودو په خوا خوږو کې به لوى ماتم جوړ شي؛ دکورنيو چارو وزير ،، ايلي يچائى،، ويلي وو چې دشارون دجنازې او تدفين مراسم به دنيلسن منډيلا دتدفين دمراسمو نه هم درانه وي او ډېر خلک به پکې ګډون وکړي نو ځکه به يې خاورو ته سپارل يو اوونۍ وځنډوو،،

خو چې کله يوه ورځ تېره شوه او دنړۍ يو هېواد هم دشارون په مړينه اسرائيلي دولت ته دغمرازۍ او تسليت پيغام راونه لېږلو نو اسرائيل سخت پيکه شول او دلازيات خجالت نه دځان ژغورنې لپاره يې يوې اوونۍ ته دتدفين دځنډ پرېکړه لغوه کړه او دشارون دجسد نه يې ژر ځان خلاص کړ. پخپله اسرائيلي رسنيو هم اعتراف وکړ چې دشارون دتدفين په وروستو مراسمو کې ايله ۷ سوو تنانو ګډون کړى و چې دامريکا نه دراغلي يو کوچني وفد پرته پکې بهرني يو ميلمه هم ګډون نه وکړى، تردې چې په اسرائيلو کې دبهرنو هېوادونو سفيران هم دې مراسمو ته نه وو راغلي.

په اروپائي پارلمان کې دشارون په مړينې ديوې دقيقې لپاره دچوپتيا غوښتنه وشوه خو دپارلمان وياند مارټن چولز دا غوښتنه رد کړه دپارلمان هالنډي غړي چې دا غوښتنه يې کړې وه کله يې چې دخفګان اظهار وکړ نو ټولو يې خوله پدې خبرې بنده کړه چې ته ولې ديو جنګي مجرم طرفدار يې؟

دشارون دتدفين دمراسمو دډېر پيکه والي له امله ،، هارټز ،، نومې اسرائيلي اخبار ليکلي و چې دمرګ نه پس دشارون سره انصاف ونه شو؛ شارون چې څومره لوى ليډر و دتدفين مراسم يې هغسې درانده پرځاى نه شول، پردي خو پردي وو؛ نړيوالو خو شا کړه خو خپلو هم خپل اتل ته هغه احترامات وړاندې نکړل دکومو چې هغه حقدار و.

# اهل سنت والجماعت یا ناجیه فرقه

خلور مه برخه

مفتي شاهد حقاني

## اهل سنت والجماعت څوک او چاته ویل کیږي ؟!

دانو هغه پوښتنه ده، چې ځوابول يې هم اسان او هم دځينو پيچلتياوو څخه ډک دي ،اسان ځکه دي، چې مخکې مو وويل چې څوک دقرآن او سنت پيروان ،دصحابه وو او سلفو صالحينو پر پله روان او خپل عقايد او اعمال يې دسلفو په منهج جوړکړي او داهل اهوا او اباطيلو پر لارو نه ځي ،نو دا اهل سنت والجماعت دي، دا تعريف ډير وسيع او هرمسلمان پکې داخليدای شي ،خو سخت ځکه دی ،چې هرڅوک نن سبا داهل سنت والجماعت دعوه کوي ،خو حقيقت کې پکې داهل سنت والجماعت اوصاف نه ترسترګو کيږي ،نو دداسې مدعيانو سره دعوی چلول هم خورا سخت او هم دسردماغزو له خوراک سره مرادف وي ،ډيری خلک په داسې خوشبينۍ کې پراته دي ،دا بيچاره ګان ځانونه داهل سنت والجماعت علمبرداران بولي ،خو چې اعمال او کړنې يې چې دشريعت مطهره په قالب کې واچوي سمې پکې نه راځي ،په هرصورت زمونږدې پرله پسې ليکنو موخه اصلاحي هدفونه دي ،دکوم جهت ټکول او غندل ندي ،که خدای Ψ ته منظوروه ،نو که ټول نه وي ،څه ناڅه حق جويان خوبه ورته دحقيقت له عينکوګوري او کومه خبره خوبه يې خوښه شي.

دلته دې څيړنه کې مو هڅه کړې، چې دمتقدمينو ،متاخرينو او دعصرحاضردنامتو مفتيانو داقوالو په رڼا کې اهل سنت والجماعت وپيژنو او دحقيقت تل ته پرې ځانونه ورسوو !

په (البحرالرايق علی کنزالدقايق )کې علامه زين بن نجيم رح داسې ليکي : وسئل أبو بكر القاضي عن الرجل هل يعلم أنه على مذهب أهل السنة والجماعة فقال: إذا رجع علمه إلى كتاب الله وإلى ما قاله السلف الصالح فهو على مذهب السنة والجماعة. (البحرالرايق /ج۸/ص۱۵۸)

دقاضي ابوبکررح څخه چا ديوه سړي په باب وپوښتل ،چې آيا هغه به پدې پوه شي، (څنګه به پوه شي؟ )چې دا داهل سنت والجماعت په مذهب دی ؟نوده ورته ځواب کې وويل: چې کله دده علم دالله Ψ کتاب ته او هغه چې سلفوصالحينو ويلې رجع وکړي ،نودا داهل سنت والجماعت په مذهب باندې دی. دبحرالرايق ددې عبارت څخه معلومه شوه ،چې اهل سنت والجماعت هغه څوک دي، چې دقرآن ،سنت او سلفوصالحينو په پله روان وي ،اوهغو چې په کومه مسئله څه قول او عمل کړی وي ،هماغه يې تګلاره وي، نو دا شخص اهل سنت والجماعت دی.

هغه تعريف چې حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله تعالی د(اهل سنت والجماعت )دعقايدو دحاملينو کړی، هغه دی چې د(هدايې) مشهورې شرحې (العنايه )را نقل کړی او په هغې کې حضرت امام ابوحنيفه رح داسې وايې چې:

مَا رُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ مَذْهَبِ أَهْلِ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ فَقَالَ: هُوَ أَنْ يُفَضِّلَ الشَّيْخَيْنِ: يَعْنِي أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ عَلَى سَائِرِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ، وَأَنْ يُحِبَّ الْخَتَنَيْنِ: يَعْنِي عُثْمَانَ وَعَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ، وَأَنْ يَرَى الْمَسْحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ.(العناية شرح الهداية جزء۱ص۲۲۲)

ترجمه:دحضرت امام ابوحنیفه رح څخه چا دا اهل سنت والجماعت په هکله پوښتنه وکړه، چې دا چاته وایې ؟نوده مبارک ورته ځواب ورکړ ،چې دا هغه څوک دي ،چې حضرت شیخین (حضرت ابوبکرصدیق τاو حضرت عمر فاروق τ)په نوروصحابه ووغوره ګڼي ،اوهم (ختنین )یعنې درسول الله ρددواړو زومانو(حضرت عثمان ذا النورینτاو حضرت علي کرم الله وجهه )سره مینه لري ،او دریم دا چې په موزو باندې مسح روا بولي.

دامام صیب ددې تعریف نه داسې معلومیږي ،چې دې وخت کې د روافضو فتنه ښه په شد ومد کې وه، دوئ چې حضرت شیخین نه منل ،هم یې دمسح علی الجرموقین څخه انکار کاوه او ځینې بیا داسې خلک هم وه، چې حضرت عثمان τ او حضرت علي τسره یې مینه نه لرله، نو دامام صیب له نظره اهل سنت والجماعت هاغه چاته وویل شول ،چې دا دري واړه صفاته ولري اوبس.

دحنفي مذهب په مشهورکتاب (الطحطاوي علی المراقي )کې اهل سنت والجماعت داسې معرفي کوي ،چې د( امام ابوالحسن اشعري رح اود امام ابومنصورالماتریدي رح ) پیروان اهل سنت والجماعت ځکه همدوئ دواړو امامانودمعتزلو او روافضوغوندې دباطلو ډلو ټپلو منطقي او علمي مقابله وکړه او دعلم عقاید راڼه اوپر حقایقو دولاړ علم په ځلاکې یې خورا نه هیریدونکې نقش ولوباوه ،لکه دطحطاوي پدې عبارت کې چې راغلي :

والمراد بالعلماء هم أهل السنة والجماعة وهم أتباع أبي الحسن الأشعري وأبي منصور الماتريدي رضي الله عنهما قال صلى الله عليه وسلم (لا تزال طائفة من أمتي ظاهرين على الحق لا يضرهم من خالفهم حتى يأتي أمر الله ) وهم على ذلک وهؤلاء هم أهل العلوم الشرعية والإلهية من أهل السنة والجماعة لأن الناس مع وجودهم آمنون من كل محنة وضلالة دينية......) (حاشية الطحطاوي على المراقي جزء۴)

ژباړه:اومراد د علماوو څخه اهل سنت والجماعت دي ،اودا دامام ابوالحسن اشعري رح او امام ابومنصور ماتریدي رح پیروان دي ،حضرت رسول الله ρفرمایي چې :زما له امت څخه به یوه ډله همیشه په حق غالبه وي ،څوک چې یې مخالف دي ،کوم ضرربه ورته نشي رسولی،تردې چې دالله τ امر راشي ،اودوئ به په دې باندې وي اودا خلک دااهل سنت والجماعت څخه دشرعي او الهي علومو متحملین دي ،ځکه خلک به ددوئ دوجود سربیره بیا هم له هرقسم محنت او دیني ضلالت څخه بچ وي.....

دعلامه طحطاوي رح دڅیړنې نه داسې جوته شوه ،چې ټول هغه څوک چې دامام اشعري رح او امام ماتریدي رح اتباع دي ،او ددوئ په هغو عقیدوي مسایلو چې دباطلو ډلو په وړاندې یې ظاهرې کړې ، ټول اهل سنت والجماعت دي ،دده له تعریف سره ګرد باطل فرق ترې ووتل ،او اهل حق ډلې پکې شاملې شوې ،روافض ،معتزله ،جهمیه ،خوارج ،مجسمه ،قدریه ،مشبه،اونورې ټولې هغه فرقې ترې ووتلې، چې ځانونه دا سلامي دین برخه بولي، خو دوئ دالله Ψدکتاب او سنت الرسول درسته پیروي نه کوي ،یا تاویلات پکې کوي ،یا اهل ظواهر دي ،یا نور معنوي تحریفات پکې کوي ،دا ډلې ټپلې که څه هم ځانونه ددې (ناجیه فرقې) برخه بولې، خوهغه عقاید چې دعلم کلام دې دوو امامانوخلکوته تشریح کړي ،دوئ له هغې سره چندان اړخ نه لګوي ،اونه پدې خپل عقاید برابروي ،نوځکه دوئ ته اهل اهوا وویل شول او اهل حق ورته ونه ویل شول.

نامتو محقق او مشهورمفتي علامه ابن عابدین شامي رح هم په خپلا مشهوره حاشیه (ردالمحتار علی الدالمختار ) کې چې نن سبا یې په اسلامي ټولنوکې دیوې معتمدې

فتاوی منزلت او مقام خپل کړی، دعلامه طحطاوي رح غوندې اهل سنت والجماعت (اشاعره او ماتریده) بولي، اوپدوئ کې انحصار غوره بولي لکه چې (فتاوی شامیه) کې لیکي:

قوله: (عن معتقدنا) إي عما نعتقده من غير المسائل الفرعية مما يجب اعتقاده على كل مكلف بلا تقليد لاحد، وهوما عليه أهل السنة والجماعة وهم الاشاعرة والماتريدية، وهم متوافقون إلا في مسائل يسيره أرجعها بعضهم إلى الخلاف اللفظي كما بين في محله. حاشية ردالمحتار الجزء١ص٥٣

ترجمه:........هغه چې اعتقاد یې په هر مکلف انسان واجب دی اودې کې تقلید ته کومه اړتیا نشته، هغه هاغه ده ،چې داهل سنت والجماعت پرې ګروهمن دي ،چې هغه (اشاعره او ماتریدیه) دي ،او دعلم کلام دا دواړه امامان سره متفق دي ،خو صرف څو مسایل دي، چې پرې سره اختلاف نظر لري ،خوهغې ته هم ځینې علماء خلاف لفظي وایي.

ددې څخه بریښي ،چې دامام ابوحنیفه رح له عصر وروسته چې باطلې فرقې ډیرې شوې وې ،نو دمسلمانو اتفاق پدې وشو ،چې اهل سنت والجماعت اشاعره او ماتریدیه دي، اوهمدا نظردحنفي مذهب دی، دوه فوق الذکرکتابونو هم تصدیق او تایید کړل ،چې تقریبا مجموع کې دڅلورګونو مذاهبوپیروان دعلم کلام دې دوو امامانو کې دیوه عقاید مني او همدا اهل سنت والجماعت بلل کیږي.

په (الحاوي) کې چې (بحرالرایق) ترې نقل کړی ،هغه څوک اهل سنت والجماعت بلل شوي ،چې دا لاندیني لس صفات پکې موجود وي:

وَفِي الحَاوِي مِنْ أَهْلِ السُّنَّةِ وَالجَمَاعَةِ مَنْ فِيهِ عَشَرَةُ أَشْيَاءَ:
الْأَوَّلُ أَنْ لَا يَقُولَ شَيْئًا فِي اللَّهِ تَعَالَى لَا يَلِيقُ بِصِفَاتِهِ.
وَالثَّانِي: يُقِرُّ بِأَنَّ القُرْآنَ كَلَامُ اللَّهِ تَعَالَى وَلَيْسَ بِمَخْلُوقٍ.
الثَّالِثُ: يَرَى الجُمُعَةَ وَالعِيدَيْنِ خَلْفَ كُلِّ بَرٍّ وَفَاجِرٍ.
وَالرَّابِعُ: يَرَى القَدَرَ خَيْرَهُ وَشَرَّهُ مِنْ اللَّهِ تَعَالَى.
وَالخَامِسُ: يَرَى المَسْحَ عَلَى الخُفَّيْنِ جَائِزًا.
وَالسَّادِسُ: لَا يَخْرُجُ عَلَى الأَمِيرِ بِالسَّيْفِ.
وَالسَّابِعُ: يُفَضِّلُ أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ وَعَلِيًّا عَلَى سَائِرِ الصَّحَابَةِ.
وَالثَّامِنُ: لَا يُكَفِّرُ أَحَدًا مِنْ أَهْلِ القِبْلَةِ بِذَنْبٍ.
وَالتَّاسِعُ: يُصَلِّي عَلَى مَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِ القِبْلَةِ.
وَالعَاشِرُ: يَرَى الجَمَاعَةَ رَحْمَةً وَالفُرْقَةَ عَذَابًا. (البحرالرایق /ج٢٢/ص٨٣

ژباړه: اهل سنت والجماعت هغه څوک دي ،چې دا لس صفات پکې موجود وي: ١- دالله تعالی په هکله هغه څه نه وایې چې دصفاتو سره یې مناسب نه وي ،٢-پدې اقرار کوي چې قران کریم دالله ﷻ کلام او غیر مخلوق دی ،٣-عقیده یې داوي، چې داخترونو او جمعې لمونځ هر نیک او بد مسلمان پسې کیدای شي ،٤-عقیده لري، چې هر خیر اوشر دالله ﷻ له لوري دی ،٥-په موزو دمسح جوازمني ،٦-دمسلمان پاچا پر خلاف وسله وال بغاوت نه کوي ،٧-څلورواړه خلفاء دنوروصحابه نه غوره بولې ،-٨په ګناه سره اهل قبله ووته کافر نه وایې ،٩-څوک چې داهل قبله وو نه وفات شي ،نو دجنازې لمونځ پرې کوي ،١٠-دمسلمانانو جماعت یا ټولی رحمت بولې او ددې جماعت نه بیلیدل عذاب بولي.

که په عمیق نظر دې مصداقاتو ته وکتل شي، نوله وړایه به وبریښي، چې اهل سنت والجماعت دحق پرستو خلکوډله ده او نظریات یې پر اعتدال باندې ولاړدي ،دافوق الذکرصفات ،ربښتیا هم دسلفو دعقایدو سره اړخ لګوي ،که داسلافو معتقدات تر مطالعه لاندې ونیول شي، نوهمدا پورتني صفات لري او همدوئ دا ډول مواصفات لرل ،خودعلامه طحطاوي رح او علامه شامي رح دا اطلاق چې اهل سنت والجماعت دامام اشعري رح او امام ماتریدي رح پیروان دي، ډیرجامع او مانع اطلاق دی ،دې اطلاق کې با طلې فرقې جلا او حقه فرقه همدا یوه پاتې شوه ،که بیا لړ نورهم ورته ځیرشو او ددې (اهل سنت والجماعت) دروانې

څېړنيزې لړۍ مخکيني مباحث په پام کې ونيسو ، نوراته به جوته شي ،چې دعلم کلام ددې نوموړيو امامانو پيروان دڅلورګونومذاهبو پيروان دي ،يعنې اشاعره او ماتريديه چې ورته اهل سنت والجماعت ويل کيږي ،همدا په حقيقت کې دمذاهبواربعه وو پيروان او اتباع دي ،ځکه ددې خلکو په عقايدوکې امامان ،امام ابوالحسن اشعري رح او امام ابومنصورماتريدي رح دي اوپه فرعاتوکې يې امامان حضرت امام ابوحنيفه رح ،حضرت امام شافعي رح ،حضرت امام مالک رح او حضرت امام احمد بن حنبل رح غوندې دعلم ،نبوغ او تقوى ځلي دي ،خودانصاف تقاضا داده ،چې داهل سنت والجماعت دمصداق دايره تنګه ونه ساتو اوهغه تعميم پکې ومنو ،چې زمونږسلفو صالينو منلى،چې هغه ځوک چې پخپله پکې داجتهاداستعداداو صلاحيتونه وي او تقليد ته اړتيا نلري ،که څه هم په اربعه مذاهبوکې نه راځي، خو چې پخپله له نصوصو استنباط کولاى شي ،ددې باطلو فرقو په عقايدو سم پوهيږي اومقابله يې کولاى شي ،دا هم اهل سنت والجماعت دي ،يعنې دومره علمي قوت ولري ،چې دشريعت هر حکم ورته ښکاره وي، نو ولې به ددې نه سترګې پټې کړو او اهل سنت والى به يې نه منو !يا لکه دمشکاة شريف په (کتاب الاعتصام) کې چې ددې محشي اونامتوحنفي عالم حضرت مولينا غرغشتو رح وايې :چې اهل سنت والجماعت هغه ځوک دي، چې (سب سلف )نه کوي ،يعنې دا ناجيه فرقه هغه چاته ويل کيږي ،چې دسلفو سنت سنت بولې ،بدعت ورته نه وايې اوبد رد پسې نه وايې ،نودې ډول تعريف سره بيا څه تعميم پيدا کوي ،که دا ځوک ومني چې دخلفاى راشدينواعمال هم سنت دي اوکوم حرج پکې نشته، نو چې هرځوک وي به خو اهل سنت والجماعت به ورته ويل کيږي !

لکه ددې روايت داستناد له مخې چې (عن عرباض بن سارية ، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: «عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين من بعدي وعضوا عليها بالنواجذ» (مشكل الاثار للطحاوى ).

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى دمشكاة په شرح مرقات کې ليکي :چې دې حديث کې ددې استلزام نشته چې دخلفاى راشدينو سنت دې هماغه وي ،چې دحضرت رسول اکرم ρسنت وي ،بلکې دا به جلا سنت وي او دې ته به دخلفاى راشدينو سنت ويل کيږي ، لکه دالمرقات پدې عبارت کې چې دشلو رکعتو تراويحوپه باب صراحت کوي او وايې ((وكونها عشرين سنة الخلفاء الراشدين وقوله عليه الصلاة والسلام عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين ندب إلى سنتهم ولا يستلزم كون ذلك سنته إذ سنته بمواظبته بنفسه أو إلا لعذر(٠مرقاة المصابيح شرح مشكاة المصابيح /ج۴/ص۴۳۹ ))).

همداسې په سنن ابي داود /ج۲/ص ۲۷۹ ،جامع ترمذى /ص ۳۸۲ ،ابن ماجه /ص۵ ،دارمي /ج ۲/ص۲ ،مسند امام احمد /ج۴/ص۲۷ ،دخلفاى راشدينو اعمال او تګلاره سنت ګرځول شوي ،پدې توګه دخيرالقرون دزماني خلک هغه چې په باب يې بشارتونه شته، زمونږ مقتدايان دي اوافعال يې داتباع او پيروى وړ دي، شايد بيا داهل سنت والجماعت په اطلاقاتو کومه ستونزه نوي، خو چې دخير القرون دا سلافو اعمالوته ځيني خلک العياذبالله بدعت ووايې ،نو دلته بيا اهل سنت والجماعت پخپله همدا داربعه وومذاهبو پيروان پاتې کيږي او په بل چا يې دې عصرحاضرکې اطلاق دستونزوڅخه هغه وخت خلاصيداى شي چې داپورتني شرطونه پوره کړي !والله اعلم.

ددې حوالو په رڼا کې ويلاى شو ،چې اهل سنت والجماعت هغه چاته ويل کيږي ،چې درسول الله ρدسنتو پيرو اودصحابه وو رض په پله روان وي ،او پدوئ دمعيار حق باور لري ،ددې حديث شريف مصداق وي چې((ما أنا عليه واصحابي الحاكم /ج۱/ص ۱۲۹ ،ترمذي/ص ۲۲۴ ))يعنې خلفاى راشدينو چې کوم اعمال کړي ، ورته سنت ووايې او خداى Ψمکړه دبدعت حکم پرې ونکړي،نوداسې اشخاص اهل سنت والجماعت دي.

په (اديان باطله او رصراط مستقيم) اردو ژبي کتاب کې ليکي: چې ددې نه پس بيا اهل سنت والجماعت هغه څوک دي، چې ائمه اربعه وو (امام ابوحنيفه رح، امام شافعي رح، امام مالک رح او امام احمد بن حنبل رح) ته حق وايي، او پدوئ کې ديوه امام مسايل قبول او مذهب يې ومني، بيا ليکي چې د اهل سنت والجماعت په نزد د شريعت دا څلور اصول دي، چې ددې په منلو به دا کس په فرقه ناجيه کې شامليږي، چې هغه لومړی قرآن کريم، دوهم سنت، دريم اجماع امت او څلورم قياس دی. (اديان باطله اور صراط مستقيم ۲۷مخ).

په (منهاج السنة ۲۷۲/۳ طبعه مصر) کې د حنبلي مذهب ستر امام شيخ الاسلام ابن تيميه رح ويلې، چې ((فان اهل السنة تتضمن النص والجماعة تتضمن الاجماع فاهل السنة والجماعة هم المتبعون للنص والاجماع) ژباړه: د اهل سنتو څخه په سنت کلمه مراد نص دی، يعنې کتاب الله او سنة الرسول ترې مراد دی، او په جماعت کلمې سره ترې مراد اجماع ده، نو اهل سنت والجماعت د نص او اجماع پيروانو ته وايي.

د (عقد الجيد) په حواله د (صراط مستقيم) مصنف ليکي: چې د ائمه اربعه وو اتفاق د صحابو په اتفاق مبني دی، او د ائمه اربعه وو اختلاف د صحابوو په اختلاف مبني دی، او په کومو مسايلو کې چې د صحابوو رضی الله تعالی عنهم او ائمه وو رح اجماع ده، دې کې اختلاف کول د اجماع څخه وتل دي، او په کومو مسايلو کې چې د ائمه اربعه وو اختلاف دی، پدې کې نوی اختلاف پيدا کول، هم د اجماع خلاف دی او څوک چې ددې څخه خارج دي، هغه اهل سنت والجماعت ندي.

## د فرقه ناجيه په باب د امام شاه ولی الله رح محدث دهلوي وضاحت:

اقول الفرقة الناجية هم الاخذون فی العقيدة والعمل جميعاً بما ظهر من الكتاب والسنة وجری عليه جمهور الصحابة والتابعين الخ.........(حجة الله البالغة /ج۱/ص۱۷۰ کراچی طبع) ترجمه: زه وايم چې نجات مله فرقه هغه ده، چې په عقيده او عمل دواړو کې هغه څه را اخلي، د کتاب او سنت څخه څرګند او د جمهورو صحابه کرامو رض او تابعينو رح پرې عمل کړی وي، او د غيرناجيي فرقې په هکله امام شاه ولی الله رح صيب وايي چې: وغير الناجية كل فرقة انحلت عقيدة خلاف عقيدة السلف او عملاً دون اعمالهم......الخ ژباړه: او غيرناجيه فرقه هغه ده، چې سلفو يعنې صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم او تابعينو د عقايد او اعمالو خلاف کومه عقيده او عمل خپل کړي.....




نور بيا ..........

# پالیسیهای نادرست امریکا سرآغاز جنایات بین المللی است

ذبیح الله مجاهد

امریکـــا در عصـــر کنـــونی روی پالیســـیهای ضـــد بشـــري و امپریالیســـي خـود، جهـان را در محـاذ هـای مختلـف در مخـاطره هلاکت قرار داده است، اگر امریکا چند دهه دیگرهم گذاشته شود تا در امور کشورها وملیت های دیگر، دست باز مداخلـه داشته باشد، دیری نـه خواهد گذشت کـه ملل جهان را بـه طرف جنـگ سوم جهانی محصوصا اتومی خواهد کشاند.

در این آواخـر دست درازی آمریکایهـای در امـور مملکت هـای دیگـر، سـبب بسـا ناهنجـاری هـای ضـد بشری شده و بـه هزاران تن زندگی خود را در کنج وکنـار مختلف جهان از دست داده ونظامهای مشروع سقوط کرده اند.

در سـال ۲۰۱۳ م مداخلـه غیـر مسـتقیم امریکـا در کشـور مصر و جلو گیری از حکومت محمد مرسی توسط اجیران دیرینه خود در مصر را میتوان مثلی الگوی تذکر داد.

بعـد از سـقوط نظـام دیکتـاتوری حسـنی مبـارک در کشـور مصر، امریکا به بسیار شتاب زدگی دست خود را به نظامیـان آن کشور دراز کرد، روزهای که قـانون جدید در مصر هنوز تـدوین نه شده بود و انتخبات هم برپا نـه گشته بود، امریکـا بـه شـورای نظامی مصر که امور مملکت را اداره میکرد، بیست میلیون دالر کمک نمود که کمک نـه بلکي پول پیش پرداخت مزدوران خـود در دستگاه نظامی مصر بـود، مـردم مصـر بـا قـاطعیت و خواسـت اکثریت مطلق محمد مرسی عضو حزب اخوان المسلمین را بـه حیث رهبر خود گزیدند،ولی در جریان یـک سال آمریکـا نظامیـان و سیکولرسـتان را در مصـر علیـه نظـام محمـد مرسـی تحریـک نمـود و سـر آنجـام نظـام محمـد مرسـی را کـه بـه تـرازوی دیموکراسـی غـرب هـم برابـر بـود سقوط داد کـه درنتیجـه خـون هـزاران تـن افـراد بـی دفـاع و ملکـی بـه اشـاره امریکـا توسـط نظامیان مصر کشته شدند.

دو اقدام دیگری امریکا سبب غوغای جدید در جهان:

چنـدی قبـل غوغـای سیاسـی علیـه رژیـم اوکـراین بـه سرکردگی یـانوکویچ بعد از آن اغاز شد کـه اوکراین از امضـاء سندی ابا ورزید که میخواست اوکراین را در اتحادیه اروپا شامل سازد، اخیرا حکومت اوکراین کـه بـه خواست ملت خـود تعین گردیـده بـود بـه دسیسـه امریکـا جمـع اروپـا سـقوط داده شـد، امریکایها توسط چند مزدور خود در کشور اوکـراین تعدادی از مـردم اوکـراین را علیـه رژیـم خـود تحریـک نمودنـد و سـبب خونریزی صدها تن در اوکراین وسقوط نظام یـانوکویچ شد، بعد از فروپاشي نظام اوکـراین آن کشور جدا تحت مخـاطره تجزیـه

قرار گرفت و بهانه خوبی برای مداخله مستقیم روسیه هم فراهم گشت، امریکا گرچه روسیه را هوشدار می دهد ولی واضح است که در حین جریان مشاجره ها و پالیسیهای کشورهای امریکا وروسیه تصادمات جدیدی در اوکراین و حتی تمام منطقه آغاز شود، در کل مسئولیت همه حوادث ضد بشری که به میان می آید مسئولیت آن به دوش آمریکا وپالیسیهای نادرست امپریالیزم درجهان است.

غوغای دومی در کشور ترکیه سرپا گردیده است، حزب حق وعدالت ترکیه به رهبری عبدالله گل و حکومت رجب طیب اردغان در چند سال حاکمیت خود توانسته است که ترکیه را هم در عرصه اقتصاد وهم در عرصه های اجتماعی و سیاسی از بهرانهای موجود نجات دهد، زمانی که رجب طیب ارغان به کار خود آغاز می نمود ترکیه کشور شماره (۷۰) اقتصادی در جهان بود، ولی اکنون تحت رهبری ارغان ترکیه در رده کشور شماره (۱۵) در جهان اقتصاد به حساب می آید که با مجودیت فساد گسترده قبلی درنظام، پیشرفت قابل ملاحظهء میباشد، همچنان ترکیه در عرصه های مختلف زندگی پیشرفتهای قابل ستودنی داشته است، ولی امریکا شیطانت خود را در آن کشورهم آغاز نموده و در صدد تحرک مردم علیه حاکمیت رجب طیب اردغان است، همچنان اردغان کشور ترکیه را در ضمن تمام بهبودی ها به طرف یک کشور راستین مسلمان هم در حرکت داده است که همین نقطه غرب را سراسیمه ساخته و امریکا به رهبري اهریمن های غرب دسیسه ها را علیه نظام کنونی ترکیه طرح ریزی می نماید.

از مطالعات وضعیت سیاسی در ترکیه چنین بر می آید که درزمان نزدیک ما شاهد ناهنجاری های جدید در ترکیه نیز همچو مصر خواهد بودیم.

روزی قبل وزارت خارجه امریکا نگرانیهای خود را نسبت به وضعیت حقوق بشر در جهان ابراز داشت، کشورها را متهم به نقض حقوق بشر نمود و مثلی قاضی القضات جهان از حقوق و بشر!!؟ صحبت کرد، ولی کشور چین که در راپور سالانه امریکا زیادتر مورد انتقاد قرار گرفته بود علیه راپور ونگرانی امریکا عکس العمل تند را ابراز داشت و جنایات ضد بشری آمریکا را به رخ وزارت خارجه امریکا کشید و برشمرد.

چین در عکس العمل خود در ضمن موارد زیاد، مسئله حملات تروریستی و خصوصا استفاده از هواپیماهای بدون سر نشین در کشور پاکستان را یاد آوری نمود.

در راپور کشور چین آمده که درضمن سال گذشته در حملات هواپیماهای غیرسرنشین آمریکایی (۹۰۰) غیر نظامی که طبعا بشر بودند در کشور پاکستان کشته شده اند.

کشور چین در راپور خود پرده را از جنایات حکومت بارک اوباما علیه مردم خود نیز برداشته و موارد مظالم زیادی را در داخل امریکا تذکر داده که در آن مستقیما به حقوق انسانها تجاوز صورت گرفته است.



همچنین کشور چین امریکا را روی افشاسازی ثبت وشنود مکالمهء ملیونها افراد در امریکا وجهان نیز مورد تعنه قرار داد و این عمل را برخلاف آزادیهای بشری دانست، حکومت چین در مورد چگونگی وضعیت حقوق بشری در چین قضاوت مردم چین را مهم دانست نه پروپاگند امریکا را.

اگر جهان علیه شرافگنی امریکا متوجه مسئولیت خود نه شود، دیری نخواهد گذشت که جهان توسط پالیسیهای غلط و نادرست امریکا به طرف جنگهای داخلی و خانمان سوز مواجه گردد، حتی احتمال آن می رود که در صورت عدم جلو گیری امریکا در امور ممالک دیگر، کشورهای اتومی جهان را مجبور به کارزار نظامی نماید که طبعاً تمام بشریت را در مخاطره هلاکت ونابودی قرار خواهد داد.

دهیوادله نامتو دیني عالم سترروحاني شخصیت شیخ القران والحدیث مولانا عبدالستار جان ،صاحب دمر کې پاته برخه :

# دجهاد له مهمو ادابو دامیر اطاعت، دجهاپه مال کې له خیانت نه اجتناب ، عدل او داسر اروساتنه ده.

## فرهنګي کمیسون ، دجهادمهمه حصه په مخ وړي او دلوی بشارت مستحق دي

**پوښتنه** : جناب شیخ صاحب ! داچې په هیوادکې داشغالګروپه خلاف سپیڅلی جهاد روان دی اوپه خوراپاکواو معصومو قربانیومخ په وړاندې درومي ، تاسي دجهاد دیوه سپاهي لپاره کوم امور اواداب ډیر ضروري اومهم بولی چې هغه عملي پرڅان تطبیق اورعایت کړي ، نرڅوهم الهي رضاحاصله کړي اوهم دولس خواخوږي اومینه جلب اوخپله وګرځوي ؟

**ځواب** : اول ادب په کې احتساب یعنی جهاد لپاره د رضاد الله پاک او د اعلا کلمة الله ، دانیت پکې اول ضرور ده، مختلفو روایاتو سره داحدیث روایت شوي دی ، نبی کریم (ﷺ) نه پوښتنه وشوه چې یو سړی جهاد کوي دپاره ددې چې خپل شهرت حاصل کړي ددې دپاره جهاد کوي چې خپل شجاعت خلکو ته ښکاره کړي اودپاره د مال جهاد کوي نو کوم یو پکې مجاهد فی سبیل الله ده ،نبي کریم (ﷺ) په جواب کې ور ته وفرمایل (من قال لتکون کلمة الله هی العلیا فهو فی سبیل الله )یعني ددې لپاره جنګیږي چې د الله (عَزّ وَجَلّ) کلمه اعلی وګرځي د الله تعالی دین حاکم وګرځي د کفر کلمه ذلیله او سافله وګرځي د اسلام کلمه واحده وګرځي د کفر کلمه متفرقه او متشتطه وګرځي نودااولنۍ شرط چې اعلا کلمة الله ، که هغه پکې نه وي نو اجر او ثواب پکې نشته .

بل مهم شرط پکې اطاعت د امیر ده چې امیر ور ته څه حکم کوي د هغه اطاعت به کوي خو روایاتو کې دا قید ورسه لګول شوی چې اطاعت د امیر په امر معروف کې چې مشروع او معقول وي، اطاعت د امیر که څوک نه کوي بلکې معصیت کوي اوخلاف کوي د هغه انتهایې ډیر ضررونه دي لکه داحددغزاواقعه چې په یوه کنډو باندي پنځوس کسان مقرر کړل شوي و رمات په سر کر دګي د عبدالله ابن جبیر (رضی الله عنه) او نبي کریم (ﷺ) اصرار ورباندې کړی وه چې دامرکز به تاسو نه پریږدي که مونږه غالب شو او که مغلوب شو، کفاروچې حمله وکړه دری ځلی اوپه سوروباندی خالد بن ولید مشري درلودله په اسونو باندي خو له دې ځای چې غشی ورباندې خلاصولی اسونو قدرت نه لرو چې مخامخ ورباندي راشي بلااخر هغو شکست وخوړو او مخ په طرف د غره شواو شاه یې طرف د صحابو ته شوه او دوی له وروسته پسي روان وه هغه څه چې دوی غوښتل چې هغه فتح او نصرت وو هغه یې نصیب شو په دغو کسانو کې څلویښت کسانو معصیت وکړو او د عبدالله ابن جبیر (رضی الله عنه) نه سر کشې او معصیت وکړو او د نبي کریم (ﷺ) په وصیت یې عمل ونه کړو او دوی وویل چې الغنیمه او دوی چې کوز شولو نو خالد ابن ولید ته فرصت په لاس ورغی او راپور ته شو پاته لس کسان یې شهیدان کړل او ددی خوانه هم پری ور کوز شولو او د غر لخواهم پری راکوز شولو او د دواړو طرفو نه یې مسلمانان راګیر کړله او هغه کاری پری وکړو چې نوم یې تاریخ او سیرت لیکلي ده چې داسي بله سخته واقعه په صحابو نه وه راغلي او داد نه اطاعت او نافرمانۍ نتیجه وه چې قران او حدیثو ذکر کړی وه ، بله غزوه د خیبر وه ، نبي کریم (ﷺ) چې خیبر ته تلو نو بلال (رضی الله عنه) ته یې وویل چې اعلان وکړه چې د کومو کسان اوښ یا اس یې ضعیف وي نو هغه به نه ځي او د چاچې اس یا اوښ ډیر مست اوشقب وي هغه به هم نه ځي نو ډیر ضعیفان بیر ته واپس شولو یو کس وه چې دا اعلان یې اوریدلي و عمل ورباندی نه وو کړی اس یې ډیر مست و او په یو ځای کې یې وغورځاوه او مړ شو او جنازه یې نبي کریم (ﷺ) ته راوړه نبي کریم(ﷺ) پوښتنه وکړه چې داولې مړ شو ور ته وویل شول چې د اس نه غورځیدلي وه او مړ شو نبي کریم (ﷺ) پوښتنه وکړه چې د بلال اعلان یې اوریدلي وه ور ته وویل شو

چې اوریدلې وه نو نبي کریم (رضي الله عنه) ورباندې جنازه ونکړه بلکې وي ویلو چې (لا تحل الجنة لعاص) یعني د عاصي لپاره جنت حلال نه ده ، همدارنګه بله واقعه هم په خیبر کې وه نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) صف بندي وکړه او امر یې وکړو چې څو پورې زما امر نه وي جنګ به نه شروع کوي یو صحابي په یو یهودي باندې حمله وکړه او یهودي پدې مسلمان باندې حمله وکړه او مسلمان یې شهید کړو هلته هم نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) وویل چې د عاصی لپاره جنت حلال نه ده نو اطاعت د امر ډیر ضروري ده.

د جهاد بل مهم ادب له خیانت څخه ځان ساتنه ده او دا یو لوی جرم او ګناه ده ، خصوصاً د جهاد په مال غنیمت کې ، په اسلام کې دغه کار ته غلول وایې او د اغلول ګناه کبیره ده پدې کې ډیر محرمیتونه پیداکیږي له لویو درجو او رحمتونو څخه محروم ګرځي ،نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) چې کله خیبر فتح کړو او د خیبر نه بیرته راتلو وادی القراٰ ته چې راورسیده نو دلته هم یهود میشت و دوي سره یې اراده د صلحی یاد جنګ درلوده د نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) سره یوه غلام وه هغه دده په سامان باندې مقرر وه هغه سامان له اوښ نه رابښکته کاوه پدې وخت کې یوه غشی اتفاقي راغلو ورباندې ولګیده چې ویشتونکی یې نه ومعلوم او شهید شو صحابه کرامو وویل چې ده ته دې شهادت مبارک وي، ځکه هغه د جهاد په سفر کې د نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) په خدمت کې وه او د یهودو له طرفه ولګیده او همدغه ته شهادت وایې نو شهادت دې ورته مبارک وي، نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل چې کلا یعنې داسې نه ده هر مقتول ته شهیدمه وایې( هوفی النار) دا په جهنم کې دی دهغه څادر له وجې نه چې ده اغوستي و مال د غنیمت نه خو قبل القسمت ( تشتغل علیه النار)یعني هغه څادر سبب د دخول د نار ورته وګرځیده او یا همدغه خپله څادر د اور ورته ګرځي او داور په څادر کې به پروت وي، همدارنګه د نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) بل غلام وو چې هغه کر کر ته نومیده او هغه هم په خپل مرګ سره مړ شو چې نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) خبر شو نو په حق کې وویل چې (هو فی النار) یعني دا هم جهنمي دي( فی عباءت قد غلّها) دا هم په وجه د یو څادر سره چې څادر یې پټ کړی وو چې غنیمت مال ته رسیدلې نه وه نو هغه ته یې هم ویلو چې دا په نار کې ده په اندازه د ګناه خپلې به وي.

همدارنګه بله واقعه چې مشکوة شریف رانقل کړی ده چې رجل داصحابو د نبي کریم(صلی الله علیه وسلم) نه وفات شو کله یې نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) له جنازه نه خبر کړو چې جنازه تیاره ده هغه (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل (صلوعلی صاحبکم) تاسو مونځ د جنازې ورباندې وکړی زه لمونځ ورباندې نکوم ،صحابه کرام ډیر پریشانه شول ، صحابه و کرام خوباور درلود چې نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) مخبر صادق دی خو د رجل په ګناه باندې پوهه نه وو چې په څه ګناه باندې د نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) د جنازی نه محروم وګرځیدلو هغوی وویل چې کله مو دفن کړو او دهغه سامان مو وپلټلو نو څه اندازه مری یې له یهودو نه پټې کړې وې یعني مخکې لدې چې دمال غنیمت حکم پرې جاري شي هغه تصرف پکې کړی وو (ما یساوی درهمین) چې ۲ درهم سره یې قیمت برابرو و ،پدې وجې باندې د جنازې د نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) نه محروم وګرځیدو

همدارنګه نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) دغنیمت مال یوه ( اوښ ) سره نیږدې ودریدو او د اوښ د سنام نه یې یوه دانه وړی رااخیسته او خلکو ته یې په ګوته جګه ونیوله وې ویل چې ددې مال په دغه اندازه باندې هم ماته روا نه ده مګر خُمس او خُمس ددې غنیمت هم زه بیرته په تاسې تقسیموم، نبي کریم(صلی الله علیه وسلم) وفرمایل چې (ادوالخیاط والمخیط ) که ستنه جاوړی وي او تار نو هغه دی هم بیرته واپس کړي یو کس څه تار اخستی وو نبي کریم (ص) ته یې وویل چې دا ما ددې لپاره اخیستی وو چې د اوښ زل ورباندې وګنډم خو چې دومره خطرناکه سو هغه مې بیرته واپس کړ ،یوه صحابي پس لدې اعلانه څه وړی راوړې نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) ور ته وفرمایل چې اعلان دی اوریدلي وو چې څه مالونه وی هغه راوړی چې تقسیم یې کړو هغه ورته وویل چې اعلان مې اوریدلي وو خوله ماڅخه ناوخته شو، نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) ترینه قبول نه کړو ورته یې وویل چې ته به په خپله د امال د قیامت په ورځ مجاهدینو ته رسوي، صحابه و چې داسې اعلانونه واوریدل نو چا یو بند د ځیلی راوړ او چا دوه چې مونږه خو خبر نه وو چې دومره سخت وعید پکې راغلی ده ،نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل چې یو شراک هم د نار څخه دی او دوه شراکین هم دنار نه دي ،نولازمه ده چې مجاهدین دبیت المال اومال غنیمت په امورو کې ډیر محتاط ووسي اوله خیانت څخه په جدي توګه اجتناب وکړي .

بل مجاهدین چې کومې فیصله کوي په هغو کې عدل او انصاف پکار دي، له رشته داري او تعصب نه به انتهایي اجتناب کوي فیصله د حق به کوي اګر په ځان وي او یا په ورور اویا هم یې د پلار په حق کې وي ، د قرانکریم هم همدا حکم دي چې قضاوت به انتهایي شفاف او په حق سره استوار وي دا سبب د رغبت د خلکو ګرځي په انصاف برابري فیصلې ډیر لوی اثر لري، لکه د نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) زمانه کې د بني خذیمه په قبله کې یوې ښځې غلا کړې وه او د هغې په حق کې امر شوی وو چې لاس به یې قطع کیږي نو دقبیلې خلکو وویل کچیر ته ددغې ښځه لاس قطع شي نو دا خو د قوم لپاره غټ شرم ده نو موږ باید نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) ته سفارش وکړو چې

دغه ښځه معاف کړي ، نوقبيلې ددغه جرائت لپاره اسامه بن زيد انتخاب کړ . اسامه بن زيد نبي کريم (ﷺ) ته سفارش وکړو په دغه وخت کې د نبي کريم (ﷺ) په رنګ کې تغير پيداشو ور ته يې وويل چې اسامه ! ته په حدودالله کې ماته سفارش کوې هغه هم خفه شوله خپل سفارش څخه تير او معافي يې وغوښتله چې زه پوه نشوم نبي کريم(ﷺ) ور ته قسم کوي چې ( والذى نفسى بيده لوسرقت فاطمة لاقطعت يدهااعاذ الله منها ) يعني زمادې په هغه ذات قسم وي چې زمانفس دهغه په لاس کې دی، کچيرې فاطمه (زمادزړه ټوټه) هم سرقه وکړي اوهغه نصاب او ثبوت ته ور سيږي نو زه به هغې لاس قطع کوم .

همدغه ډول مجاهدينو ته تعليم په صيحيح ډول سره پکار دی ځکه اوس موجوده اتفاقي جنګونه نه دي بلکې تکتيکي جنګونه دي نو پکار ده چې مجاهددجنګ ښه طريقه زدکړي اوپه ټولوامورواومهار تونوځان پوه اوسنبال وګرځوي ،له يولوري به دښمن ته ښه ضربه ورسيږي ،بل به دخپل امير اوقوم په زړه محبوبيت پيداکړي .



حضرت سعد(رض) چې په غزاد احد کې زر غيشي ويشتلې وو نبي کريم(ﷺ) ور ته داسې دعاکوي (الهم صدد رمياه اللهم اجب دعاءه) خدای ته يې غيشي مضبوط کړي او ته يې مستجاب الدعوات وګرځوي ، دغه راز نبي کريم (ﷺ) ور ته وويل چې ( فداک ابی وأمی )يعني زما مور او پلار دې له تانه قربان وي ، دحضرت سعد(رض) چې ښه رميه زده وه نو نبي کريم (ﷺ) ته ځومره محبوب وګرځيدو ور ته يې وويلې چې فداک ابی وامی، حضرت علی (رض) وويل چې دحضرت سعد (رض) نه پر ته دبل چاپشان کې ماد نبي کريم (ﷺ) دغه ډول کلمات ندي اوريدلي علت يې داوه چې دجهادپه ميدان کې به هغه په ښه برابر اوموثر غيشي ويستل او توده مقابله به يې کوله

ديو مجاهدلپاره بل مهم ادب دادی چې دجهاداومجاهدينوراز به ساتي ، راز ساتل سبب د کاميابی ګرځي اوافشاء يې ناکامي اوخيانت دی ،بنو قريظه چې نبي کريم (ﷺ) محاصره کړي وو اوپه ابتداکې يې اراده د تسليمی نه درلوده خو وروسته پوهه شول خبر وته اماده شول اودهغه لپاره يې ابولبابه (رض) ورواستاوه ابو لبابه صاحب چې ورغلو هغه ته يې وويل چې د نبي کريم (ﷺ) په حکم تسليميدل څنګه دي ، ابولبابه (رض) پخپلې مری لاس راتير کړ اووي ويل چې تسليميدل ستاسودټولوذبحه ده ، يوراز او سير د نبی کريم(ﷺ) يې د کفارو په مخ کې ښکاره کړ ، ابولبابه قسم خوري چې ما قدمونه له هغه ځايه نه وه ښورولي زه پوه شوم چې ما خيانت د الله (جل جلاله )اودهغه د رسول (ﷺ)) سره وکړو په کومه لاره چې راغلی وم خپله لاره مي بدله کړه او مدينه منوری ته لاړم نبي کريم (ﷺ) ته ورنغلم ځکه چې ما خيانت کړی وه او ځان مې پر ستني پوري وتړ لولوړی او تندی مې تيرولي يوازی لمانځه لپاره به مې لور اويابل چاته اجازه ور کوله چې خلاص مې کړي اوعهدمې کړی وو چې الله پاک زما توبه قبوله نه کړي تر هغه به زه ځان خلاص نه کړم تر دي پورې چې ستر ګو اوحواسو دابولبابه کارپريښودو ، نبي کريم (ﷺ) چې خبر شو نو وې فرمايل چې ماته به راغلی وه مابه ور ته له الله تعالی څخه مغفرت غوښتی وه اوس چې هغه فيصله پخپله کړی دی پوه شه او الله پاک چې څه ورسره کوي د شپې الله پاک) توبه نازله کړه او بی بی امه سلمه (رض) ور ته وويل چې بشارت ور ته ورنکړم نو حضور (ﷺ) ور ته ويل چې بشارت ور ته ور کړه جمات خواته راغله بشارت يې ور ته ور کړو نو هغې اراده درلوده چې خلاص يې کړي خوابولبابه ور ته وويل چې نبي کريم (ﷺ) ما په خپل خلاص نکړی نو زه به له ده ځای نه جګ نشم ، نبي کريم (ﷺ) سهار لمانځه ته راغي اوله بندنه يې خلاص کړ او توبه يې په اخلاص سره وويستله نو راز ويل داهم لوی خيانت دی له تحريک سره او له خپلو ملګرو سره ، بايدځان ترينه وساتل شي .

په سر کې موهم ويلي ووچې دامير اطاعت دجهادله اهموامورو څخه ګڼل کيږي ، که اطاعت ونشي نو تر شاانتهايي ډير ضرورونه لري ،لکه تير کال چې کوم تعليمات داسلامي امارت له لوري ور کول کيدل

دمشر انوله لوري په باربار طالبانواومجاهدينو ته دا اعلان وشو چې موبايل به نه استعمالوی خوبیوشمیرهغوچي دمشرانوله حکم نه خلاف کړی وه اوموبايل يې كاراوه له سختو مشكلاتوسره مخ شول ، ياشهيدان اوياهم اسيران وګرځيدل، چې دا ټول دبې اطاعتي اوخلاف ورزی اثر دی .

. پوښتنه : په اخير کې محترم شيخ صاحب که د فرهنګي کميسون نشراتي برخي ته څه نصايح اولارښوونې وکړي ، خوشحاله به شو ؟

ځواب : د فرهنګي کميسون خدمتونه اووظايف د جهاد له قسمونه نه يو قسم دی، لکه چې نبی کريم (ﷺ) فرمايلي دي چې (جاهدو باانفسکم واموالکم والسنتکم ) جهاد که باالنفس وي جهاد که باالمال وي او جهاد که په ژبه وي او د جهاد مفهموم همدغه دی چې جهاد بذل د طاقت ته ويل کيږی په مقابله د کفارو کې باالسيف والسنان او اللسان والبنان وباالحجة والبرهان چې خپل وس او طاقت به د کفارو مقابله کې په توره او په نيزو سره هغه وخت کې چې اسلحه موجوده ده اوس وخت کې چې کومه اسلحه موجوده ده او د امقابله به هغوی سره کيږی او دا به په لسان او قلم سره کيږی لسان او قلم دواړه دفرهنګي کميسون وظيفه ده او دا يو قسم جهاد دی پدې کې ډير اخلاص پکار ده ،بيان د واقعيتونو بايدوشي ، د اسلام محاسن او د نبي کريم (ﷺ) سنن چې دا ټول د حکمتونو نه ډک دي ښکاره کول او تبليغول يې پکار دي ، ساينسدانانو چې څومره تجزيه کړي ده هر سنت د نبي کريم (ﷺ) د پاره يې ډير ډير حکمتونه ذکر کړي دي دا پيش ګوياني نبي کريم (ﷺ) ډيرې مخکې کړي اوس خلک د هغو تحقيقاتو ته رسيدلي ، د هغوی په حقانيت باندی اقرار کوي الله تعالی دغه مقدسه وظيفه تاسي باندې لوروليې چې د اسلام محاسن ، الهي احکام ، نبوي سنت اود کفارواوبرغلګرو په مقابل کې دجهادضرورت په ګوته کړي ، په دې برخه کې موچې څومره خدمتونه سر ته رسولي هغه دې الله پاک درنه قبول کړي او چې نور وڅومره ته مو اراده وي نو الله (پاک) دې در ته نور هم توفيق در کړی

فرهنګي کميسون اوچاري ديوه ملت اوحرکت دژبې مثال لري وژبه هم قلاده او هم بلا ده که په سمه استعمال شي ډير فوايد لري او که ناسمه اوناجايزه استعمال شي زيات منفی اثرات لري ، دابښکاره خبره ده چې په خلکو کې دامارت او تحريک څومره مقبوليت راځي هغه دفرهنګي کميسون دمثبتو تبليغاتو اثر اوعلت وي اوخدای مکړه څه کمزوري پکي راځي نوپړه ارومرو فرهنګي کميسون ته متوجه کيږي چې ولې يې دخلکو اوامارت ترمنځ مثبت صميميت خپرولو ته هڅې ندي کړي اويايې دامارت غوره کړني دولس ترغوږوندي رسولي .

حسان ابن ثابت (رضي الله عنه) د نبي کريم (ﷺ) شاعر وو نبي کريم (ﷺ) به ور ته ويل چې (هاجيهم يا اوهجيهم ) چې د کفاروذم او بدي بيان کړه دا د فرهنګي کميسون کار دی فان جبرايبل معک ، جبرايبل (ع) ستا موءيد هغه تاسره مدد کوي، نو کچيرې فرهنګي کميسون د اسلام ، جهاداونبوي سننتو رجحانات بيانوي اود کفرپه مقابل کې په ژبه اوقلم جهاد کوي ، نو دابيالوی بشارت دی اوله تاسي سره الهي مرسته ارومروشامل حال ګرځي ،نبی کريم (ﷺ) چې د عمرې لپاره دفتحې په اوم کال مکې مکرمې ته داخليده نو شاعر د نبي کريم (ﷺ) ور ته په مخکې شعرونه ويل د کفاروذم اوبدي يې بيانولو صحابه و به ور ته ويل چې د نبي کريم (ﷺ) په مخکې شعرونه وايې؟ نبي کريم (ﷺ) ور ته وويل پريږدی دا شعرونه په کفارو د غشو نه هم سخت تاميری پريږده چې دا وو ايي ، نو داسي تبليغات کول چې کفار مرعوبه وی ، مسلمانان تشويقه وی دا د تاسو وظيفه ده الله پاک دې پدې وظيفه کې تاسو صداقت او اخلاص نصيب وګرځوي، حسان (رضي الله عنه) د نبي کريم (ﷺ) نه اجازت وغوښتلو چې زه د مشر کينو قريشوذم بيان کړم نبی (ﷺ) ور ته وويل چې په قريشو کې خو زه هم يم ،حسان صاحب ور ته وويل چې زه به داسې ذم بيان کړم چې تا به داسې پاک ترينه راوباسم لکه ويښته چې له وړو نه څوک راوباسي دا په کوم صورت کې کيداشي چې يوڅوک په قلم او بيان کې ماهر وي نو قوم ته به نسبت نکوي بلکې د کافر به شخصي قبايح بد صفات ذکر کوي ، نودفرهنګي کميسون ملګري هم بايدداسې ذکاوت اومهارت ولري .

تاسي وګوری چې دقلمي جهادڅومره لوی اثرات دي چې د زيد ابن ثابت دليکلواوقلم په برکت مطبوع قرآن زمونږه او ستاسو په مخکې پروت دی دا د هغه د قلم برکت ده چې په نبي(ﷺ) به نازل شو نو ده به ليکلو ، کوم ترتيب يې چې پيداکړ د صحوفو په طريقه سره دامشوره د شيخينو وه چې زيد ابن ثابت ته يې ور کړه چې يوځای ته يې راجمع کړي دا د هغه د قلم برکت ده کوم چې اوس مرتب او مولف کتاب ګرځيدلی ،نو ستاسو ژبه او قلم يوه حصه د جهاد ده او جهاد کې تاسو نه انتهايي اخلاص پکار ده

په اخير دازما شخصي نظر دی . که څه هم تاسي په خپل کار کې ښه مهارت لری ،چې مجلو کې مضمونونه ډير لوی لوی راځي او خلک يې ټول مطالعه کولی نشي او که مضمونونه واړه اومختصروي ښه مطالعه يې کيږی او مطلب ورنه زر اخستل کيږی او که اوږد وی مطلب هم زر نه ترې اخستل کيږی او په خلکو يې مطالعه درنيږي .

# ټاکنې به چېرته کېږدي؟

ع - حکیم

د ژمي ساړه، د کرزي د بلواکه رژیم او د دوی دبادارانو لپاره د هوسایي یوه لمحه وي، ځکه چې د ژمي په سړو کې طالبان نه وي، دوی له همدې موقعې نه په استفادې د ځان لپاره دختهو پوزه جوړوي، او پرلپسې یې په ځمکه او اسمان کې غوراری جوړ کړی وي، څو خوار، بې وسه کلیوال سره راټول کړي، زندان پرې ډک کړي، اوازه ګډه کړي، شل مو ووژل او شل موژوندي ونیول!

د زوی ژبه موتر خوله شه! ولې مو داعملیات له حمله ترقوسه نه کول، چې ښکاره طالبان ګرځېدل او ستاسې ګزمې یې در لولپه کولې؟؟؟

سږنی ژمی بیا د کرزي د بد رژیم د تبلیغاتو ژمی و، پرلپسې یې داسې تبلیغوله چې ګواکې زموږ چرسي اردو له خپلو بادارانو پرته هم آن پنځوس کسه طالبان په یوه ځای له منځه وړلای شي. سړی حیران شي، چې وه زوی مړ ې! ښه سره پوهېږو چې ته چېرته د طالبانو دوژلو ادعا کوي هلته په ژمي کې اوهغو ساحو کې چې عملیات ترسره کوي دطالب نوم هم نه وي. دوی اصلاً غواړي په دې ګرم تبلیغاتي ژمي سره راروانې ډرامې (ټاکنو) ته د بشپړې امنیتي زمینې دعوه وکړي. په داسې حال کې چې هره ورځ یې په رسنیو کې لولو، اورو، ګورو چې په بېلابېلو ولایاتو کې بېلابېل ارقام د رایي ورکونې مرکزونه یا بېرته لغوه شوي یابه له ګواښ سره مخ وي. مګر پر دې سربېره د کرزي مفسد رژیم غواړي دا ډرامه ترسره کړي، او د ډرامې یوولس ممثلین چې ډاېر کتېري به یې د دوی دبادارانو په لاس کې وي، په ولس ووینې. خو چېرته؟؟؟

د کرزي د بلواکه رژیم خو آن د ارګ ماڼۍ هم له ګواښه خوندي نه ده پاتې، د دوی دبادارانو تر ټولو پټ ځای د سي آی اې مرکز ته هم د اسلام سرښندونکي ورننوتل، د لبنان هوټل یې هم پرې وغماوه، نو دهېواد پلازمېنه او په پلازمېنه کې بیا په خپله د پاچا څوکۍ چې په خطر کې وي، نو ټاکنې به چېرته وشي؟ د تېرو ټاکنونه دوه ورځې وړاندې فدایانو د کابل ښار په سر سره واخېست، د ټاکنو په ورځ په اتمې حوزې مخامخ فدایي برید وشو. نو د کرزي د پیسوټولولو پروژه به ملت ته څنګه ډاډ ورکړي، چې دوی به د رایي ورکولو پر مهال بې غمه وي؟ که څوک دادعوه کوي، چې اردو، پولیس یا اربک به د دوی امنیت خوندي کړي، نو دا خوب دې اوبه ته وواېي، ځکه چې د طالبانو یواځې د جنوري په میاشتنې راپور کې له اسنادو سره سلګونه ځوانان له همدې لیکو راجلاشوي وو، او څوک چې پکې پاتې دي، هغوی لېوني نه دي چې د مفکر (!) یا مفتي (!) یاهم نر (!) لپاره خپل ځانونه قرباني کړي، دوی د میاشتې اړولو په تمه دي، نو د ټاکنو ورځ چې د حمل شپاړلسمه ټاکل شوې، هیڅ نظامي تبع به دې ته حاضر نه شي، چې د میاشتې په نیمایي کې د پردیو ګټو لپاره خپل ځان قرباني کړي، بلکې دوه اوونۍ وروسته یې معاش راځي، چې د رایي ورکونې ټول مرکزونه بندېږي هم، بند دې شي، دی ولې خپله نیمه میاشت پرې خرابه کړي؟؟؟

نو ټاکنې ممکن، لکه د تېر په څېر بیا هم یواځې په ارګ، دحوزو په تعمیرونو او دولایاتو په مقرونو کې ترسره شي. چې بیا به نو پوره یوه میاشت د دوی په پایلو لانجه وي، چې کوم والي د کوم نوماند لپاره کار کړی؟ نو راتلونکی ولسمشر (!) به په ټوله معنی لکه د تېر په څېر انتسابي وي، نه انتخابي!

# د مستشرقينو ظهور

قاري عبدالولي

# په اړوند د رسول الله ﷺ وړاندوینه

په څوارلس سوه کلن تاریخ کې صلیبیانو او نورو کافرانو له مسلمانو سره مخامخ ډېرې زیاتې جګړې وکړې، ولې په هر ډګر کې له ماتې سره مخامخ شوو، تر دې چې دوی د مخامخ جګړې په ځای یو بل سنګر پرانست او د مسلمانانو په منځ کې یې د تفرقې او اختلافاتو را منځته کولو لپاره فکري او رواني جګړه پیل کړه او مستشرقین یې را منځته کړو، هغوی په لومړي قدم کې عربي زده کړه، په دوهم قدم کې اسلامي علوم لکه قرات، تفسیر، حدیث، فقه، اصول فقه او نور علوم تر لاسه کړو، تر څو دوی په دې پوه شي چې په څه طریقه له مسلمانانو سره جګړه تر سره کړي، پخپل دین کې ورته ستونزې را پیدا کړي، نوې فرقې او ډلې را منځته کړي، په خپل دین کې ورسره دلائل ووایي. دې حالت ته رسول الله ﷺ اشاره کړې ده، حاکم روایت کوي او وایي چې د شیخینو په شرط صحیح حدیث دی، او طبراني یې هم روایت کوي له حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: ﴿سَيَأْتِي عَلَى أُمَّتِي زَمَانٌ، يَكْثُرُ الْقُرَّاءُ، وَيَقِلُّ الْفُقَهَاءُ، وَيُقْبَضُ الْعِلْمُ، وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ، قَالُوا: وَمَا الْهَرْجُ؟ قَالَ: الْقَتْلُ بَيْنَكُمْ، ثُمَّ يَأْتِي بَعْدَ ذَلِكَ زَمَانٌ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ رِجَالٌ لا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ، ثُمَّ يَأْتِي زَمَانٌ يُجَادِلُ الْمُنَافِقُ الْمُشْرِكُ الْمُؤْمِنَ

ژباړه: ... بیا به داسې زمانه راشي، چې منافق او مشرک به له مؤمن سره مجادله او مباحثه کوي.

حاکم په مستدرک کې بیا داسې روایت را نقل کوي: ﴿يجادل المنافق الكافر المشرك بالله المؤمن بمثل ما يقول﴾

ژباړه: په الله کافر، مشرک او منافق به له مؤمن سره مجادله او بحث په داسې توګه کوي، لکه څرنګه یې چې هغه وایې.

یعني په قرآن، حدیث، فقهه، تفسیر، توحید، تصوف کې به هغه له یو سوچه مسلمان سره دلائل وایي، دا عمل دوه ډوله کسان تر سره کوي، یو هغه کس چې مسلمان وي، یوازې د مطالعې، یا له یوې باطلې فرقې څخه د رنګ اخستو او جهالت په مټ ځان له یوه مدرس تقوی دار عالم څخه هوښیار او پوه ګڼي بحث ورسره کوي، په لوی مجلس کې د هغه خبره په غیر شرعي او غیر منطقي انداز ورغبرګوي، دوهم هغه کسان دي چې کفارو د مسلمانانو په منځ کې تفریق او بېلتون راوستو لپاره ګمارلي وي، هغوی دیني زده کړې تر سره کړې وي، چې نن سبا دا ډول کسانو ته مستشرقین ویل کیږي، او په هر ځای کې په پراخه کچه موجود دي.

دا هم د رسول الله ﷺ یوه معجزه ده، چې اوس مهال سل په سله کې رښتیا شوه، په داسې توګه چې کافر له مسلمان سره د هغه په دین کې باطل دلائل وایې او بحث ورسره کوي. تاسې به په نړیوال ټیلیویزوني مناظرو کې

لیدلي وي، چې یو طرفته مسلمان عالم او بل لوري مستشرق (کافر عالم) په قرآن او حدیث کې له یو بل سره بحث او مجادله کوي.

## د رښتیا او دروغو اغیزه (حدیث)

عن عبد الله بن مسعود (رضي الله عنه)، عن النّبيّ (صلی الله علیه وسلم)، قَالَ: (إنّ الصّدقَ یَهْدي إلی البرّ، وإنّ البر یَهدي إلی الجنّة، وإنّ الرّجُل لَیصدقُ حَتّی یُکتَبَ عنْدَ الله صدّیقاً، وإنّ الکَذبَ یَهْدي إلی الفُجُور، وإنّ الفُجُور یَهدي إلی النّار، وإنّ الرّجُل لَیکذبُ حَتّی یُکتَبَ عنْدَ الله کَذّاباً.(

## د حدیث تخریج

دا حدیث امام بخاري (رحمه الله) په خپل صحیح، کتاب الأدب، باب قوله تعالی: وکونوا مع الصادقین کې نقل کړی دی.

د صحابي لنډه پېژندنه عبد الله بن مسعود بن غافل یې نوم، ابو عبد الرحمن یې کنیه ده، د هذیل د قبیلې سره یې تړاو درلود، نو ځکه ورته الهذلي ویل کیږي، د ده مور ام عبد نومیده، او له دې امله به ورته ابن ام عبد هم ویل کیده، دی د لومړنیو مسلمانانو څخه دی، د عمر فاروق (رضي الله عنه) څخه یې هم مخکې اسلام قبول کړی دی.

د اسلام سبب یې دا وو چې نوموړي به چیلۍ څرولې، یوه ورځ رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د ده څنګ ته تیریده، د ده په اجازه یې یوه وچه چیلۍ راونیوله، هغه یې ولوشله چې شیدې په کې راپیدا شوې، د دغه منظر په لیدلو عبد الله اغیزمن شو او ایمان یې راوړ.

نوموړی به هر وخت د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) سره ګرځیده، د هغه مسواک، څپلۍ او د اوبو کوزه به ورسره وه، ده حبشې ته هم هجرت کړی وو، نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) ورته د جنت زیری ورکړی وو، د نوموړي ډیر فضیلتونه په حدیثو کې ذکر شوي دي، ډیر لوی عالم او په قرآن کریم پوهیدونکی صحابي وو، ډیر حدیثونه ترې هم نقل شوي دي، نوموړی د هجرت په ۳۲ کال په مدینه کې وفات شو، عثمان بن عفان (رضي الله عنه) پرې جنازه وکړه، او په بقیع کې خاورو ته وسپارل شو (رضي الله عنه.(

## د حدیث ژباړه

عبد الله بن مسعود (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وینا نقل کوي چې: «رښتیا نیکۍ ته لارښوونه کوي، او نیکي د جنت لاره ښیي، یو سړی به رښتیا وایي تر دې چې د الله په وړاندې به هغه رښتیا ویونکی ولیکل شي، او دروغ د ګناه طرف ته لارښوونه کوي، او ګناه د اور لاره ښیي، یو سړی به دروغ وایي، تر دې چې د الله په وړاندې به دروغجن ولیکل شي.«

## د حدیث تشریح

رښتیا هغه اخلاقي ځانګړتیا ده چې په دنیا کې پرې د انسان ټول کړه وړه تلل کیږي، هم دا رښتیا ده چې انسان ته د نورو انسانانو په منځ کې اعتماد او باور وربخښي، هم دا رښتیا ده چې انسان د ګناهونو څخه ساتي، هم دا رښتیا ده چې د انسان د مخ رڼا زیاتوي، او د بدمخۍ، بې باورۍ، بې اعتمادۍ او په ټولنه کې یې د شرم او حیا د له لاسه ورکولو څخه ساتي.

رښتیا انسان د ګناهونو څخه ساتي او د نیکیو لاره ورښیي، او دروغ انسان په ګناهونو زړور کوي، ځکه چې د خپلو ګناهونو د پټولو لپاره به له دروغو څخه ګټه پورته کوي.

هم دغه لامل دی چې الله تعالي د ایمان خاوندانو ته له تقوی څخه وروسته د رښتینو خلکو د ملګرتیا حکم کوي او ورته وایي چې: ﴿یَا أَیُّهَا الَّذینَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَکُونُوا مَعَ الصَّادقینَ﴾ [التوبة: ۱۱۹]، ژباړه: «ای د ایمان خاوندانو له الله څخه ویره وکړئ او د رښتینو خلکو سره ملګري شئ»، د دې آیت څخه معلومیږي، چې یو انسان به هلته د تقوی څښتن کیږي، کله چې هغه د رښتینو خلکو ملګرتوب غوره کړي، د هغوي سره په یوه لار روان شي، د ژوند په ټولو شیبو کې د هغوی سره مل وي، او د رښتینو خلکو څخه هغه خلک هدف دي، چې هغوی د حق طرف ته دعوت او بلنه ورکوي، ځکه چې د ټولو څخه ستره رښتیا حق دی، او لوی دروغ باطل او د باطل ملګرتوب دی.

کوم خلک چې د رښتینو خلکو ملګرتوب کوي، هغه په خپله هم د دغه عالي صفت څښتن کیږي، او کوم خلک چې د دروغجنو او ناوړه خلکو په مجلس کې کښیني پاڅي، د هغوی سره ملګرتوب کوي، نو هرو مرو له هغوی څخه اغیزمن کیږي، او په هغه اخلاقي مرض اخته کیږي، په کوم چې هغوی اخته وي، ځکه چې ملګرتوب هرو مرو اغیزه لري، او یو ملګری د بل څخه اغیزمن کیږي.

که یو څوک دا فکر کوي چې که زه په شخصي ژوند کې د ایمان او تقوی څښتن یم، نو د ناوړه او دروغجنو خلکو ملګرتوب، د هغوی سره

ناسته پاسته، د هغوی سره اړیکې جوړول، د هغوی افکار تائیدول به، زما تقوی ته کوم زیان وانه ړوي، نو دا هغه خیال دی چې قرآن کریم یې په دې آیت کې رد کړی دی.

په دغه ډول رښتیا هغه څه دي چې انسان ته فکري، او ذهني آرام او اطمینان وربخښي، او دروغ د هغه په زړه کې خفګان او ناآرامي پیدا کوي، کیدای شي کله د رښتیا ویلو له امله انسان ته د یو لوی زیان د رسیدلو ویره وي، او د دروغو له امله هغه ته د یوې لویې دنیوي ګټې هیله وي، خو په دواړو کې به توپیر دا وي چې د رښتیا ویلو له امله به د زیان سره د هغه ذهن او نفس مطمئن وي، د هر ډول ذهني فشار څخه به خلاص وي، او په اوچتو سترګو به د خلکو سره مخ کیږي، خو بل طرف ته که د دروغو له امله یوه دنیوي ګټه لاس ته راوړي نو د ذهني فشار سره به مخ وي، نفس به یې مطمئن نه وي، او هم به د خلکو په مخ کې ټیټ سترګی وي.

څکه خو د اسلام ستر لارښود محمد (صلی الله علیه وسلم) ویلي دي: (دَعْ مَا يَرِيبُکَ إِلَى مَا لاَ يَرِيبُکَ ؛ فَإِنَّ الصِّدْقَ طُمَأْنِينَةٌ ، وَالْکَذِبَ رِيبَةٌ)، ژباړه: «کوم شي چې تا په شک کې اچوي هغه پریږده، او هغه څه واخله چې تا په شک کې نه اچوي، څکه چې رښتیا د اطمینان، او دروغ د شک وسیله ده.«

د دې حدیث څخه په ښکاره معلومیږي چې رښتیا د انسان په زړه کې خوښي او په نفس کې اطمینان او آرام پیدا کوي، او دروغ د انسان په زړه کې شک پیدا کوي، او د نفسي فشار سره یې مخ کوي.

که مونږ په دنیا کې هغو خلکو ته وګورو چې د هغوی د ژوند ډیره برخه په رښتیا ویلو کې تیریږي، په درس تدریس، او د اسلام په دعوت او بلنه کې تیریږي، د حق په ملګرتوب او د حقپالو په مجلسونو کې تیریږي، نو هغوی د اقتصادي او مالي کمزورۍ سره هم ډیر لږ د ذهني فشار سره مخ کیږي، خو هغه خلک چې د خپل ټولنیز موقعیت له امله یا د تجارت او سوداګرۍ د راکړې ورکړې له امله دروغ وایي نو د هغوي د ذهني فشار، او د ژوند د ناآرامۍ او بې اطمینانۍ کچه ډیره لوړه وي، سره له دې چې هغوی به اقتصادي او مالي ستونزې نه لري.

څکه خو نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) په څانګړې توګه سوداګرو ته په خپله سوداګرۍ کې د رښتیا ویلو اهمیت داسې بیانوي: (الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا ، فَإِنْ صَدَقَا وَبَيَّنَا بُورِکَ لَهُمَا فِي بَيْعِهِمَا ، وَإِنْ کَتَمَا وَکَذَبَا مُحِقَتْ بَرَکَةُ بَيْعِهِمَا)

ژباړه: «پیرودونکی او پلورونکی دواړه تر هغې چې سره جلا شوي نه وي (د سودا د مجلس تر پایه) واک لري (چې په خپله سودا کې تجدید نظر وکړي)، که دواړو رښتیا وویل او هر څه یې ښکاره کړل، نو د هغوی په سودا کې به برکت واچول شي، او که کوم عیب یې پټ کړ او دروغ یې وویل نو د سودا برکت به یې له مینځه لاړ شي.«

خرڅونکی باید د خپل مال په هکله اخیستونکي ته پوره معلومات ورکړي، که عیب او نقصان په کې وي، هغه دې ورته ووایي، تر څو هغه پرې پوهه شي، نو یا به یې واخلي یا به یې پریږدي، په دې صورت کې به الله تعالي د خرڅونکي په ګټه کې برکت واچوي او هغه به ورته د نورې نفعې لامل وګرځوي، او اخستونکی هم باید د خپلو روپو په اړه پوره معلومات ورکړي، هسې نه چې د هغه د مال په مقابل کې کوټه روپۍ ورکړي.

دا ټول هغه نصحیتونه دي چې اسلام یې خپلو پیروانو ته کوي، او د هر قسم اخلاقي مفاسدو څخه یې ساتي، څکه چې په دې سره د دوی ټولنه پیاوړې کیږي، او د اخلاقي مفاسدو له امله د دوی ټولنه له منځه ځي، او په ټولنیزو اخلاقو کې رښتیا هغه صفت دی چې د ټولنې ډیرې ستونزې پرې له منځه تللی شي، او دروغ د هغو ټولنیزو مفاسدو څخه دی چې ډیرې ستونزې ترې پیدا کیدای شي، که د یوې مسلمانې ټولنې غړي په څان کې د رښتیاویلو صفت پیدا کړي، نو د دوي تر مینځ به ډیرې شخړې له منځه لاړې شي، تر دې چې محاکمو ته به د تللو اړتیا هم نه پیدا کیږي، او هم به د ګناهونو کچه ډیره راټیټه شي.

الله تعالي دې زمونږ د ټولنې غړو ته په رښتیاوو د خپل ژوند د سمبالولو توفیق ورکړي، او مونږ ټول دې د هر راز دروغو څخه وژغوري. آمین.

# ماته کمپيوټر رانيسه !

قاري محمد شيباني

نن سبا په اکثرو دفترونو کې چې چاته معمولي منصب هم ورسيږي، نو له خپل مشر نه يې لومړی او اهمه غوښتنه دا وي، صيبه ! ماته خو يو ښه کمپيوټر رانيسه ! او ورپسې متصل بيا د ټچ ټيلفون او نور څيزونو غوښتنه کوي، خو که منصب يې لږ لوړ وي بيا د موټر غوښتنه کوي. خبره دا ده، چې همداسې کسانو ته لومړی د کمپيوټر او موبائل اړتيا نه وي، که چيرته ورته ضرورت هم وي، د ډېر ادنا او ارزان بيه کمپيوټر باندې يې مشکل حل کيږي، ځيني خو بيخې د کمپيوټر شاه او مخ هم نه پېژني، ولې دوی ته خو د دفتر پيسې په لاس ورځي، نو زړه يې نه پرې سوېږي، ځکه خو د اوچت او د قيمت ترين کمپيوټر او موبائل غوښتنه کوي، که چيرته همدا کسان له خپل شخصي جيب څخه مصرف کوي، بيا که هر څومره مالداره وي، په ډېر ارزانه او استعمالي کمپيوټر باندې ګزاره کوي، خو چې خبره دفتر ته شي يا په بل تعبير بيت المال ته شي بيا د نوي او اوچت ماډل کمپيوټر او موبائل غوښتنه کوي. که له ما سره موافق نه ياست بيا صرف د څو دقيقو لپاره د ځينو کسانو په اړه سوچ وکړئ، چې له تقرر څخه مخکې يې څه قسم وسائل درلودو او اوس څرنګه وسائل لري؟

په همداسې توګه همداسې کسان چې کله د خپل شخصي کار لپاره چيرته لاړ شي، نو د ډوډۍ وخت خامخا د کوم ملګري او دوست کور ته رسوي او هلته ډوډۍ خوري، که چيرته ورته په بازار کې اړ شي، نو په ډېر ادنا څيز، د پښوريانو په اصطلاح په چولو (کلول) ګزاره کوي، له خپل جيب نه د زيات مصرف هڅه نه کوي، خو که همدا کس بيا د دفتر په پيسو واک پيدا کړي او بازار ته د څه کار لپاره لاړ شي، نو بيا يې د چرګ په کړاېي هم ګزاره نه کيږي، بلکې د پسه کړاېي به خوري، او دوه درې ساعته د کړاېي په پخولو او خوړلو قرباني کوي.

ځيني کسان له چا سره د يو کمپيوټر يا بل څه وعده وکړي چې درته اخلم به يې، ولې وروسته په خپله وعده پښېمانه شي، ځکه هغه ورته کمې پيسې له زړه ويستلې وي، ولې مقابل لوری د اوچت او قيمتي کمپيوټر غوښتنه کوي.

او ځينې وخت داسې هم پيښه شوې چې د ضرورت وړ عراده خولري، خو د فروبکس او فيلډر، هوس يې هم په سترګو کې هر وخت ګرځي راګرځي او مدام په دې سوچ کې وي که داتشه يې هم ژر ډکه شي.

همداسې کسان بايد د يو بام او دوه هواوې، عملي مصداق ونه ګرځي، خپل جيب او د دفتر جيب، خپل ضرورت او د دفتر ضرورت ته د پخواني مشرانو او عالمانو په خير په يوه سترګه وګوري، تر څو له يو لوري ځان له اسراف او په عين حال کې له داسې ګناه څخه وژغوري چې بظاهر په سترګو نه ليدل کيږي، خو حقيقت کې ستره ګناه او خيانت دی او له بل لوري څخه د بې ځايه مصارف په مټ په خپل دفتر د رکود او جمود لوري ته سوق نکړي، کنه بيا دا شته تنخوا او کار به هم بيا له لاسه ورکړي، مور بايد د خپل جيب په مصرف ميړنې او د بيت المال په مصرف محتاط او سلامي او وسيږو او داسې معامله ورسره وکړو لکه څرنګه چې د يتيم له مال سره کيږي. عاميانه او جاهلانه اصطلاح نه ښيم چې د يتيم په مال لوټ او تالان جوړ شي، بلکې قرآني اصطلاح يادوم چې د يتيم مال د مال ښه ساتنه دي وشي. او د وَمَن كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ وَمَن كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ مصداق دي ځان وګرځوي.




## دتيښتي غږ

حبيب الرحمن دانش

دغزاميدان موتل نيولی زوک دی
دشملې سيوری مې ستا په مانې جګ دی

نوردې ژوند هم دشکست په مورو کوتم دی
په تمام جهان دی خور د تیښتې غږ دی

په شريرځواک دې راکړه بوربوکی ده
غليمګيه خولې دې بيانيولی زګ دی

عمري ګوزاردې توره ژامه کريک کړه
داجل ټيردې غوڅ کړی مغرور رګ دی

لاس په لاس به يې در ورم ترکابل جانه
سپين بيرغ مې په توحيد جوړ کړی برګ دی

که دژوندتولې خوښی دانش ترې زار کړي
بيا مې هم د حق جهاد پر لاره تک دی

## غزل

پیر محمد کاروان

داچې مخ یې په غبار باندې سپېره دی
ده ساتلی دهندارو غوندې زړه دی

په ګلونو باندې رنګ او خوشبو ویشي
په اغزیو کې روان لکه اوبه دی

خود به ستوري دالهام په خوب کې ګوري
چې سرو ویږدی یې ګردی کاڼی دغره دی

لوند په اوښکو لکه ستا دباڼو ګانو
سور په وینو دجمدر غوندې خونه دی

چې له تورو بلاګانو یې ډار نشته
ستا دستر ګو خواته ناست لکه رانجه دی

بدر ګه به تر غروبه در سره وي
ستر ګې وغړوه څرک دلمر خاته دی

چې شي ستړی بیا به ستا پر اوږه کیني
د ارمان په دنګ اسمان کې یو مارغه دی

خوبولي په زړه ولي چې راویښ شي
دکاروان غزل تر غشي هم تیره دی

## حماسه

حاجي محمد اواب

دوی لښکر او زه تنها یم په دې جنګ کې
هیبتناک لکه بیدیا یم په دې جنګ کې

پاکومه درست بشر له دې مرضه
غلیم پیس او زه عیسی یم په دې جنګ کې

نن چې خیږم په سینو دیرغلګرو
دمیوند ددښت هوا یم په دې جنګ کې

د ظالم په غاړه تاو لکه زینځی یم
د مظلوم ملت ښیرا یم په دې جنګ کې

د امت تږي حریت ته ملا اوابه !
پتې ږدمه او لګیا یم په دې جنګ کې

# انتخابات نیست . . .

حمید حقیقی

انتخابات نیست جز لهو ولعب
پول ستانی بهر شادی وطرب
نامزادان از برای جلب وجذب
هر یکی رامیکند رقص گلب
وعده های چرب مردم را دهد
همچو دریوزه بزاری ولقب
از سرکسازی ودانشگاه وپل
تا فرودگاه و طیاره لاف لب
لاف از آبادی و تعمیر و تخت
هم زآزادی زند این بی ادب
همچو میمون رقص بهر جاه کند
راه هموار میکند بهر لعب
از همه مزدور تر مزدور غرب
لاف آزادی زند ای بوالعجب
پول وثروت میدهد بهر مرام
دزد دخل و موش کندو روز و شب
هم برای خوردن خون یتیم
این چنین ها میزنند دهل طرب
بهر کسب اعتماد شرق و غرب
هم برای لقمه ای چرب غضب
هم برای شیوه ای عیش و فساد
میفروشند خاک وایمان ونسب
روبه و میمون و گرگس گرگ وسگ
آمده اند گرد هم چون منجلب
آمده برخطه ما اضطراب
اضطراب و انقلاب منقلب
قلب اقلیم مسلمان را رسید
تیر ظلم یاسدار منتخب
منتخب کی انتخاب از کی و کو ؟؟؟
دزدی چندی گرد هم دارند شب
ای حقیقی باش درفکر وطن !
از ره دجال ناید دین رب
دزد کی آباد دارد ملتی
سوی ملت می زند سنگ وخشب
دختران را ساخته میل ملل
عفت وعزت ربود از چشم ولب

# مجاهده !

طالب العلم نصرت زرمتی

قد نښتر، مخ دې ريحان دی مجاهده
رعب دې خپور په ټول جهان دی مجاهده

ستا محکمه اراده او متين عزم
هوډ دې لوړ لکه آسمان دی مجاهده

لکه سترګې او بانه د پاکې مينې
شان دې دومره راته ګران دی مجاهده

د جنت سينګار او حسن ښکلا واړه
په څېره کې دې عيان دی مجاهده

په ښايست او په پرتم کې دې سيال نه دی
که دلبر او که جانان دی مجاهده

بدرګه دې د تکبير په ښه هنر کړې
که دره که بيابان دی مجاهده

دا کمال د نصرت نه ښکلا د ستا ده
خوږ غزل که يې داستان دی مجاهده

# می شود افغانها ها را خرید؟

**ح - یوسفزی**

به روز سه شنبه مورخ ۴ فبروری نشریه فارن پالیسی مقاله ای تحت عنوان ده اشتباه عمده جنگ آمریکا در افغانستان به نشر رسانید که متعاقبا توسط یکی از شبکه های آمریکایی به زبان دری برگردانید شد.

نویسنده این مقاله، استیفن ام والت، به نظر خویش ده مشکل عمده اشغال آمریکایی بر افغانستان را می شمارد. مگر عمده ترین اشتباهی را که آمریکا در اشغال افغانستان مرتکب شده است فراموش کرده و یا نادیده می گیرد.

به نظر والت وارد شدن تنها در جنگ بدون مشوره ناتو، هماهنگی ضعیف اشغالگران با مزدوران در جریان جنگ توره بوره، تدوین قانون اساسی !و ایجاد به اصطلاح دولت مرکزی در کابل در سال ۲۰۰۴ میلادی، حمله بر عراق، تصمیم افزایش نیروهای اشغالگران توسط بارک اوباما در سال ۲۰۰۹، تعیین محدودیت زمانی برای خروج این نیروها، دست کم گرفتن مجاهدین توسط آمریکا، از دست دادن حمایت جنگ در کشور خود، ناکامی در مدیریت متحدان سرکش و بالاخره استراتژی ضد و نقیض آمریکا باعث ناکامی آن در جنگ افغانستان شد.

والت این اسباب را می شمارد مگر فراموش می کند که بزرگترین اشتباه آمریکا در اشغال افغانستان نادیده گرفتن تاریخ افغانستان و نیاموختن درس عبرت از شکست های پی هم اشغالگران در این کشور بوده است، چنانچه عدم اعتنا به مشوره جنرالان روسی که دو دهه قبل لذت این شکست را چشیده بودند نیز می توانست باعث دیگر مگر جزئی در شکست آمریکا بوده باشد.

آمریکا با نیروی نظامی و تکنولوژی پیشرفته گمان کرد که تاریخ تکرار نمی گردد و افغان ها نیز نخواهند توانست یاد اجداد خود را تازه نمایند و یا این که آمریکا در جمع و تفریق نتایج جنگ اشتباه بزرگی را مرتکب شود و بالاخره به یقین بداند که تاریخ به خصوص در افغانستان تکرار می گردد و هیچ متجاوز و اشغالگر، اگرچه تا به دندان مسلح بوده و از حمایت یک مشت خود فروختگان نیز برخوردار باشد نمی تواند سطور رقم زده شده تاریخ این کشور را تغییر دهد.

اگرچه سناتور آمریکایی در آغاز جنگ گفت که می توان افغانها را به کرایه گرفت اما مشکل است آنان را خرید مگر... آمریکا را چنان کور و غافل کرده بود که گمان می کرد با خریداری چند تن همه افغا ها را غلام های زر خرید خود گردانیده است و شاید هم در خفا بر این سخن سناتور خود می خندید و شاید هم سناتور خودرا به چالش نیز گرفته بودند تا ثابت خواهند ساخت که می توان افغانها را خرید...

والت در مقاله خود دست کم گیری افغانها را نیز سبب شکست آمریکا خوانده است مگر فراموش کرده است که آمریکا همه مردم افغانستان را دست کم گرفت، روزی نگذشت مگر اینکه بر خانه ای یورش برد، نه محفل شادی را در امن گذاشت و نه نماز جنازه و محفل دعا و فاتحه را، نه محاسن سفیدان را بدون درندگی گذاشت و

نه بر زنان و کودکان رحم کرد ، بلکه بر همه را یکسان تاخت و آنان را درید ، نه تنها این بلکه گاهی بردگان خودرا نیز بمباردمان های دوستانه کرد و صدها تن از آنان را مکافات داد. کرزی و دوستان وی که به ایمان به مصالح و منافع آمریکا حلف خورده بودند مجبور شدند تا با دیدن لحد سنگ دهن باز کنند و تلاش نافرجام کنند تا لجام گسیخته بادار خود را به دست گیرند.

به نظر والت از دست دادن حمایت مردمی نیز باعث شکست آمریکا گردید مگر وی فراموش کرده است که آمریکا بعد از شکست حمایت مردمی را از دست داد ورنه زمانی که آمریکا مرتکب بدترین و فجیع ترین نقض حقوق بشر می گردید ، آنگاه که بمب های ۷۰۰۰ پاوندی را بر مردم بیچاره و بی دفاع افغانستان می ریختاند ، آنگاه که آنان را همچو حیوانات جنگل های آفریقا با کلستر بمب ها شکار می کرد ، آنگاه که قریه ای را با افراد آن یکجا به خاک و خون یکسان کرد ، آنگاه که محفل عروسی را بمبارد کرده بشمول شاه و عروس یکی را نیز زنده نگذاشت و به این صورت بر قریه و قصبات و ولسوالی ها و شهرها پیشرفت کرد ، آنگاه مردم آمریکا به این پیروزی های ظاهری عساکر خود می بالیدند و کف می زدند و به افتخار آن می رقصیدند ، بلکه پیلوت شان می گفت که با خاک و خون دیدن مردم بعد از فشار دکمه پرتاب بمب احساس راحت کرده و لذت می برد ، آنگاه حمایت آنان کاملا با حکومت و عساکر بود ، مگر وقتی حکایت بر عقب گشت، طیاره های مملو از تابوت ها پی هم در فرودگاه های آمریکایی نشست کردند ، آنگاه که هزاران آمریکا برگشتند کسی دستش را از دست داده بود ، کسی پایش را و کسی عضو دیگر بدنش را ، آنگاه که دیوانه خانه های شان مملو از برگشتگان جنگ افغانستان گردید ، آنگاه که برگشتگان، چون به آشامیدن خون بی گناهان عادت کرده بودند ، آغاز به کشتن اطفال و اعضای خانواده خود کردند ، آنگاه بود که پرده تاریک و سیاه تعصب و جاهلیت قرن بیست یکم به نام دموکراسی و حقوق بشر از چشمان مردم آمریکا دور شد و متوجه شدند که اشتباه بزرگی را مرتکب شدند سپس به کوچه ها بر آمده و شعار برگشت درندگان خود را سر دادند بلکه اکنون نیز عده ای از آنان مصمم بر ادامه این جنایت اند.

پس بدین گونه آشکار شد که این حمایت بعد از شکست و فروپاشی از دست داده شد نه قبل از آن و به همین شکل اگر اسباب شکستی را که والت ذکر کرده است یک یک به خوانش گیریم در می یابیم که اصل حقیقت همانا نادیده گرفتن تاریخ افغانستان است و اسباب ذکر شده در نوشتار والت همه جزئی بوده و بعد از شکست رونما گردید که در اصل قضیه تاثیر گذار نبوده و یا تاثیر به سزایی نداشته است.

## آیا غواړې دښمن دې و ژاړې؟

د ابن ماجه په یو حدیث شریف کې له حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی، هغه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې: کله چې یو انسان د تلاوت د سجدې کوم آیت ولولي او بیا سجده وکړي، نو شیطان یو طرف ته کېني، ژاړي و وایې،ای زما هلاکته!

د ادم بچیانو ته چې د سجدې امر وکړی شو نو هغوی سجده وکړه، نو هغوی ته به جنت وي، ماته چې د سجدې امر وشو او ما انکار وکړ نو ماته دوزخ دی.
اللهم لا تزغ قلوبنا بعد ما هدیتنا...
اللهم یامقلب القلوب ثبت قلبي علی دینك
واللهم صلي وسلم علی حبیبي رسول الله

# داسلام جنګي اصول

<<<<< حامد >>>>>

داسلام سپېڅلي دين دژوندانه دټولو برخو او څانګو په اړه لارښووني لري، دژوند دهرې برخې او څانګې په باره کې يې ځانګړي احکام، اداب او اخلاق تعين او ښودلي دي، جهاد او جنګ هم داسلام په لويو څانګو کې يوه عظيم الشانه برخه ګرځول شوي چې په اړه يې اسلامي شريعت دښې جامعې لارښووني، حکمونه، اصول او مقررات ټاکلي او بيا دهغو رعايتول او په عمل کې پلي کول يې په مسلمانانو او په تيره په مجاهدينو وجب او لازم ګرځولي، له دې وجې هغه څوک چې دمجاهدينو د ورې يا کوچنۍ ډلې مشرۍ په غاړه لري هغوئ شرعاً په دې مکلف دي چې داسلامي شريعت ټاکلي مقررات او حکمونه هم پخپل ځان عملي کړي او هم يې تر لاس لاندې مجاهدينو باندې پلي کړي، ولې داسلامي حکمونو او اصولو پايمالول په مجموع کې بيرته دمجاهدينو دناکامۍ، ستونزو او دالله (ﷻ) دناراضايت سبب ګرځي.

دنړۍ په نورو اديانو او قومونو کې هم دجنګ په اړه بېلا بېلې لارښووني او مقررات شتون لري، خو داسلام سره يې توپير دادی چې هغوئ دامن حالت لپاره جلا اصول او دجنګ حالت په اړه جلا لايحې ټاکلي دي، دامن په حالت کې دهر قوم په لارښوونو کې دامن، محبت او ورورولۍ پيغام ليدل کېږي، خو دجنګ په حالت کې دهغوئ په لارښوونو کې دامن، محبت او ورورولۍ پيغام نه تر سترګو کېږي، يوازې اسلام هغه دين او نظام دی چې له نيکه مرغه دامن او جنګ دواړو په حالت کې دامن، محبت او ورور ولۍ پيغام لري، دجنګ په ګرمو شيبو او د وينو د ډکو لښتيو په مينځ کې له ځان سره هم دمحبت رحم، عاطفې او ورورولۍ پيغام ليږدوي، دسوبې او برۍ پر مهال دمفتوح قوم سره دغوره انسانې او اخلاقي روې تلقين کوي

هو! دنړۍ دنورو قومونو دفاتحو ځواکونو رويه د خپل مفتوح لوري سره ډېره ناوړه او ظالمانه وې، هغوئ دخپل وحشت او بربريت او په نشه کې دومره مست وي چې دمفتوح لوري سره هيڅکله نرمه او انساني رويه نه کوي، دهغوئ ديني او ملي ارزښتونه پايمالوي دمفتوح لوري په پت او ابرو دتيرې جسارتونه کوي، ماشومان لويان، کمزورې اوبې وزلان ټول ی مخ تر تيغه تيروي

که څه دا هرڅه دجګړې ډګر کې پوځيان کوي، خو دهغوئ ترشا د تهذيب او کلتورمفکوره کارې رول لري، د کوم لپاره چې هغوئ جنګيږي، په حقيقت کې جنګيالي ظلمونه او جنايتونه د خپل کلتور او دين داصولو په نامه کوي، کوم چې ورته دمذهبي پيشوايانو لخوا ښودل شوي، ورته دماشومانو وژل دميرمنو بې عفته کول دسپين ږيرو وژل ثواب ښکاري، خو اسلام ددې ټولو برعکس دجنګ په ډګر کې هم په کلکه داخلاقي ارزښتونو په احترام او رعايتولو ټينګارلري خپل جنګي اصول يې دانسانيت دبقا او دفاع په معيار غوره او جوړ کړي، دامن له حالت نه علاوه دجنګ حالت چې دجذبي او انتقام احساتلو وخت دی دمسلمانانو رويه به تغير نه لري.

درسول الله (ﷺ) له بعثت څخه وړاندې نړۍ ځنګل ته ورته وه، په ظاهره به جنګ دانسانانو ترمنځ وو، خو په عمل کې به دانسانيت نښه او څرک هم نه ترسترګو کيده، جنګ کې چا داخلاقو او عاطفې رعاتيولو تصور نه کاوه، کله چې اسلام راغی ورسره دجنګ په معيارونو او اصولو کې هم تغير راغی، اسلام په مکه مکرمه کې داورده ځنډ او زغم او مدينې منورې ته دهجرت وروسته مجبوراً کله دجنګ ډګر ته ددانګلو پرېکړه وکړه نو په پوره توګه داخلاقي او انساني معيارونو درعايتولو حکم وکړ، ګورئ! په دښمن دغلبې موندلو لپاره دحرامو او حلالو حدودو نه پايملوئ، په يو لاس کې توره ونيسئ په بل کې دالله کتاب (قرآن) ونيسئ، څو دجنګ په منځ کې ددواړو ترمنځ ربط او تعلق قايم پاته وي، په اسلام کې دجنګي اصولو ښه خلاصه په

دې لاندې فرمان کې په بشپړ ډول ځای شوی، کوم چې د اسلام لومړي خلیفه حضرت ابوبکر صدیق (رض) دخپل خلافت په لومړیو شیبو کې د لومړي لښکر لیږلو پرمهال خپل لومړي سرلښکر حضرت اسامه (رض) ته فرمایلی:

۱- دقتل وروسته ددښمن لاشونه مثله نکړئ!

۲- کوچنیان او بوډاګان چې دجګړې توان نه لري نه به قتلوئ، په ښځو هم کار مه لرئ!

۳-فصلونه اوبڼونه تلف نکړئ!

۴- دتګ رانګ لارې مه نړوئ!

۵- ونه لرونکې ونې قطع نکړئ، دومره څاروي ذبحه کوئ چې دهغو غوښه تاسي ته کفایت کوي زیات څاروي مه ضایع کوئ

۶- په عبادت ځایونو کې په عبادت لګیا خلکو کار مه لرئ، هغوئ پخپل کار لګیا پرېږدئ!

دا حقایق ددې ښوونه کوي چې دجنګ په اړه اسلامي حکمونه او اصول نازک اومحتاطانه دي ولې چې دجهاد غرض یواځي اویواځي دالله (ج) رضا حاصلول دي، دجهاد غرض وینه تویول نه دي، اسلام په کلکه د جنګ ډګر کې پخپلو اصولو دعمل غوښتنه کوي، دمسلمانانو فاتحینو سوبې اوبریاوې دیوه خدای (ج) درضا تر لاسه کولو لپاره وي، دمسلمانانو ډله به دفتحې وروسته داسي کارونو ته لاس نه اچوي چې په هغو تري خدای (ج) ناراض شي ،بلکې دمسلمانانو فاتحه ډله به دفتحې وروسته داسي کارونه کوي چې په هغو تري الله (ج) خوشالیږي ،دهغه درضا اوخوښۍ سبب ګرځي، عظیم الشان قرآن کې ددغه ډول فاتحانو باره کې الله (ج) فرمایلي:

دا هغه خلک دي چې کله مونږ ورته په ځمکه واک ور کړو، هغوئ لمونځونه قایموي، زکاتونه ور کوي، اوپه نیکۍ کولو حکم کوي، اوله بدو څخه منع کول کوي (الحج ۴۱ایت)

دا هغه حدود او اصول دي چې دمسلمانو فاتحینو لپاره ټاکل شوي، چې هغوئ به دبشریت دفلاح چارې پرمخ بیایي، عدالت به پلی کوي ، دحقوقو اوفرایضو په سرته رسولو کې به مخلصان وي، دخیر او شر ترمنځ به توپیر کوي.

نړۍ کې دمسلمانانو ترڅنګ دنورو ادیانو کتابونه هم شتون لري، په هغو کې دځینو ښو اصولو دشتون سربیره هغوئ دعمل اوکردار له پلوه دجنګ په ډګر کې ظالمان او وحشیان دی، او ډېر بد نوم لري ددې برعکس په جنګ کې دمسلمانانو کردار تل شاندار او دبشریت دنجات ضامن شوی ، نړۍ کې دمسلمانانو دواکمنۍ د زرکلن دور له برمه ډک تاریخ شاهد دی چې مسلمانو فاتحینو دجنګ په میدان کې تل اسلامي اصول او اخلاق رعایت کړي ، هیڅکله یې له هغو څخه سرغړونه نه ده کړي ، ولې اسلام دجنګ جواز یواځي د "اعلاء کلمة الحق" لپاره ورکړی ، دوطنونو او ښارونو اشغال او لاندې کول یې غرض ندی، اسلام چې دامن په حالت کې کوم امور جایز او روا ګرځولي دجنګ په حالت کې یې هم هغه جایز ګرځولي اود امن په حالت کې چې څه ناجایز ګرځولي دجنګ په حالت کې هم هغه ناجایز ګڼي، اسلام مسلمانو فاتحینو ته اجازه نه ورکوي چې ددوئ دلښکر دتګ په مخ کې پراته کلي اوښارونه ړنګ کړي ، یا هلته دمیشتو انسانانو سره ناوړه چلند اوبد رویه وکړي، یا دمجاهد زړه چې هر څه غواړي هغه وکړي اوتري څوک دپوښتنې حق نه لري، عظیم الشان قرآن یواځي دجنګیدونکو سره دجنګ حکم کړی دی ، یواځي دهغو خلکو دکورونو دویستو حکم یې کړی دی چې هغوئ مسلمانان له کورونو ویستلي ، الله (ج) فرمایلي:

یواځي دالله (ج) په لاره کې تاسي دهغه جنګ کوونکو سره وجنګیږئ، چې له تاسي جنګیږي، ګورئ زیاتی مه کوئ، ولې چې الله (ج) زیاتي کوونکي نه خوښوي،

نو حتمي ده چې مسلمان جنګیالی اسلامي مقرراتو ته پام وکړي څکه تري دتخلف په صورت کې هغه اسلامي مجاهد نه پاتې کېږي




# سوانح مختصر مولوی صاحب عبدالرقیب شهید

الحاج مولوی صاحب عبدالرقیب فرزند مولانا مخدوم عبدالباری روز جمعة المبارک سال ۱۳۴۵ ه ش در یک خانواده علمی درولایت تخار ولسوالی کلگفان چشم بدنیا گشود ، تعلیمات ابتدائی خود را در مدرسه ابتدائی محلی قریه زردالو دره سفلی ولسوالی کلفگان ولایت تخار فرا گرفت .

و در سال ۱۳۶۱ ه ش بخاطر فراگیری علوم دینی کوه های سر بفلک هندوکش و چترال را عبور کرده براه پشاور وارد مدرسه احیاء العلوم ضلع سوات شد تا درجه ششم از استادان بزرگوار آن مدرسه هریک شیخ الحدیث قاری صاحب حبیب الله ، شیخ صاحب محمد زکریا و مولوی صاحب عبدالخالق ادامه داد .

از سال ۱۳۶۵ هـ ش تا آغاز تحریک طالبان مسؤلیت فرهنگی جمعیت طلبه اهل سنت و الجماعة ولایت تخار را بدوش داشت .

بعدا برای تحصیلات عالی در مدرسه دار العلوم حقانیه اکوره ختک داخله نمود ، از درجه شش تا موقوف علیه رادرین مرکز علمی از شیوخ کرام حقانیه فرا گرفت .

در ایام تعطیلات تکرارا تفسیر و ترجمه قرانکریم را از شیخ قاضی فضل الله صاحب فرا گرفت در ضمن درس طلباء آسیای میانه در دارالعلوم حقانیه داخله داشتند چونکه بزبان پشتو و اردو آشنائی نداشتند بمشوره و حکم منتظمین دارالعلوم تدریس میکرد و درجه موقوف علیه را در مدرسه ضیاء المدارس در نزد شیخ الحدیث آخندزاده صاحب محمد نعیم رحمه الله خواند و دوره حدیث را یکمرتبه در دوران وزیر بودنش در کابل در مسجد پل خشتی در پیش شیخ الحدیث محمد نعیم آخندزاده رحمة الله بهره مند شد و بعد از اینکه صلیبی ها به همکاری اجیران و مزدوران خود افغانستان را تحت اشغال قرار داد بار دیگر به کشور همسایه پاکستان هجرت نمود و مرتبه دوم دوره حدیث شریف را در دار العلوم فاروقیه حیات آباد پشاور در نزد شیخ الحدیث عبدالحق صاحب کوهستانی خواند .

### فعالیت جهادی اش

شخصیت جهادی و مبارز برای تطبیق شریعت محمدی همرای مجاهدین مخلص به رهبری جلالتمآب

امیر المؤمنین جناب ملا محمد عمر مجاهد حفظه الله تعالی بنام تحریک طالبان به فعالیت آغاز نمود.

مرحوم حاجی صاحب در سال ۱۳۷۲ با جمع از دوستان طلبه تخار راهی قندهار شده با مجاهدین پیوست و با مولوی صاحب احسان الله شهید در فتح غزنی ، میدان شهر و خوست هم سفر بود .

بالآخره بعد از فتح کابل از طرف مقام رهبری امارت اسلامی بحیث وزیر شهداء و مهاجرین تعین شد و تا اشغال صلیبی ها فرائض وزارت را بعهده داشت .

قبل از وزارت و بعد از وزارت چندین سفر سیاسی رسمی به کشور های عربستان سعودی ، ازبکستان ، دوبی ، سویس و ایالات متحده آمریکا کرده است و همین سال ۱۳۹۲ هش جهت ادای فریضه حج و عمره ازطریق دبی عازم عربستان سعودی شد و ضمنا با مسلمان های مظلوم سوریه دیدن نمود .

بعداز اشغال صلیبی هادرنقاط مختلف کشور در سلسله فعالیت های جهادی و سیاسی ده ها تن از قهرمانان فدائی مجاهدین را به مراکز مختلف خارجی ها اعزام نمود و لله الحمد فدائیان به هدف رسیدند و صد ها اشغالگران خارجی را هلاک و روانه جهنم نمودند .

از سه سال به این طرف در مدرسه منبع العلوم کتب حدیث، فقهه و فنون دیگر را تدریس میکرد .

از جمله شهکاری های حاجی صاحب همین است که ده ها یتیم و بی سرپرست و بی بضاعت را سرپرستی میکرد.

جناب الحاج مولوی عبدالرقیب شهید شخصیت علمی ، جهادی و نهایت زیرک اهل مطالعه وارث علوم حضرت شیخ ولی الله محدث دهلوی رح بود، در میدان علم یک استاد محقق و مدقق و حافظ هدایه و هجة الله البالغه بود در علوم دینی و عصری فهم عالی و ید طولی داشت مرحوم آخندزاده شیخ محمد نعیم به عمق مطالعه و معلومات وی افتخار میکرد و به زبان عربی فصیح صحبت کرده میتوانیست .

چنانچه در دورانیکه در دار العلوم حقانیه زیر تعلیم بود بفرمائش مسؤلین دار العلوم حقانیه به طلباء آسیای میانه درس میداد و در ضمن درس ها نظریه جهادی ، اخلاقی ، اجتماعی ، سیاسی و طرز خلافت اسلامی را ارایه میفرمود ، شاگردان مرحوم شهید در میدان جهاد دشمنان اسلام را لرزه براندام ساخته است.

بالآخر آن پیکر اخلاق ، سخاوت و شجاعت به اثر یک حمله قاتلانه در موقعیت ناصر باغ حین که از مدرسه منبع العلوم از تدریس فارغ شده بیرون میشود به تاریخ ۲۸ دلو ۱۳۹۲ مطابق ۱۷ فروری ۲۰۱۴ میلادی توسط افراد نا معلوم به شهادت رسید. انا لله وانا الیه راجعون

از جمله همراهان و همسفران حاجی صاحب مرحوم که قبلاجام شهادت را نوشیده اند مولوی صاحب عبدالحق ، قاری صاحب عبدالحلیم ، مولوی صاحب عبدالغفار ، قاری صاحب محمد عثمان ، حاجی صاحب عبدالعزیز و قاری صاحب نورالحق میباشند .

*متأسفانه چنین شخصیت علمی ، سیاسی ، قهرمان ، نادر الوجود و جبل استقامت از طرف اشغالگران مکار و غلامان احمق شان به شهادت رسید . انا لله وانا الیه راجعون .*

# د حوت د ۳ پاڅون او کابل ښاریانو اتلولی !

جمیل میړنی

کابو ۳۵ کاله وړاندې د ۱۲۵۸ کال د حوت په ۳ نیټه یعني د شوروي یرغل نه ۲ میاشتې ورسته د کابل متدینو او مجاهدو پرګنو د خپل پراخ او له قربانیو ډک قیام په ترځ کې په ثبوت ورسوله ، چې رښتیني افغانان که هغه په ښارونو او یا اطرافو کې استوګن دي هیڅکله د خارجي یرغل په مقابل کې سرونه نه ټیټوي.

د حوت د ۳ نیټې خودجوشه او سپیڅلي پاڅون چې تش لاسو کابل ښاریانو د هغه وخت د سپرپاور مادي قوت او لوی طاغوت په وړاندې ترسره کړ، د هیواد په تاریخ کې د کابل ښاریانو لپاره له حماسو او اتلولیو نه ډکه ورځ ده.

نوموړی ولسي قیام په داسې شرایطو کې ترسره شو چې د ببرک کارمل اجیر رژیم تازه دواک په ګدی ناست وو او په خپل شیطاني وینا وو او غولوونکو شعارونو یې د ترکي او امین په دورو لدې امله بداورد ویل شروع کړي وو چې هغوی د ولس په مقابل کې له وحشت او استبداد نه کار اخیستی وو ، د کارمل مهمه هڅه داوه چې د شوروي په یرغل پرده واچوي او شتون یې د افغانستان د پرمختګ لپاره ضروري وګڼي.

خو د کابل وینو او مومنو ښاریانو د کارمل له فریب کاري خیري څخه د سرتاسري پاڅون او خوځښت په ترسره کولو توره پرده لیرې او دا یې ورته ښکاره کړه چې افغان ولس به هیڅیري هم د بهرني تجاوز په وړاندې په ارام کیننې او نه به یې هم کفري فلسفې ته د تسلیمي سرټیټ کړي.

د ببرک رژیم او روسانو د خپل هر ډول وحشت په کارولو سره کلکې هلې ځلې وکړې ، ترڅو دولسي قیام مخه ونیسي او دا حقیقت پټ کړي چې د کابل په ښار کې هم د یرغل په مقابل کې ولسي مخالفت دومره ستر او پراخ دی چې له هر کور او هرې کوڅې څخه د ملکوتي نارو زوږ راوځي او د سرو په نذرانو خپله کرکه او بیزاري له کمونیزم او د هغوله اجیرانو څخه په ډاګه کوي.

کابل ښاریانو چې یو خودجوشه او صرف په ایماني غرور او جذبه ولاړ قیام وو په روسي ټانګونو پسې یې ډبرې اخستي وي او له هر لوربه یې ورویشتلي ، تردې چې د کابل ښار په څوبرخو کې ګڼې دولتي او پوځي ودانۍ او تاسیسات دیو وخت لپاره په خپله ولکه کې اخستي وي.

ویل کیږي چې د حوت د ۳ نیټې په قیام کې چې درې ورځې په مسلسل ډول روان وو ، نیږدې ۵ زره تنه کابل ښاریان د شوروي لښکرو او کمونیست رژیم له لوري په ډیرې بې رحمۍ شهیدان شول ، په زرګونو تنه زندانو ته واچول شول او په زرهاوو تراوسه ترې تم دي.

که څه هم د حوت د ۳ نیټې له پاڅون څخه کابو ۳۵ کاله وتلي دي ، ولې لاهم د کابل ښاریانو په اذهانو کې هغه خاطرې او حماسې ژوندی او نه هیریدونکي دي.

د محمد فاضل په نامه یوه تن کابل ښاري دوخت خبري اژانس ته په خبرو کې ویلي: د حوت په دریمه ورځ ټول خلک د شوروي اشغال په مقابل کې په جوش او جذبه له بیل ، تبر، خنجرونو او نورو دودیزو وسلو او جنګي وسایلو سره د کابل لاروکوڅو ته راوتلي وو ، خلقیانو او پرچمیانو د خپلو کورونو په بامونو مورچې نیولي وي او هرچا به چې د تکبیر ناره پورته کوله له بامونو به یې ښه ګرځول او شهیدانول به

يې ، چې هغه صحنه نو موړي ته ډېره ترخه او هيڅکله يې له ذهنه نه ووځي !!

اوس که څه هم د حوت د ۳ نيټې له تاريخي پاڅون او قربانيو څخه دری نيمې لسيزې تيرې شوي او شوروي اتحاد او کمونيستي اجيران يې د خپلو جنايتونو ترخه څکلي او دنړې په مخ وجود نلري ، خو د افغان مجاهد ولس د ميړاني او حماسو تسلسل هماغسې ګرم او پرجوشه روان دي او افغانان له څه باندې يوې لسيزې راهيسې د دفن شوي شوروي طاغوت له لوی رقيب امريکا او ناټو له يرغلګرو لښکرو سره په جهاد او مقابله بوخت دي او که الله تعالی ته منظوره وي امريکايي استعماريې هم د خپل رقيب برخليک ته وررسولی دی.

د افغانستان اتل ولس که پرون د روس د ۲۷ ميګ بم غورځونکو الوتکو په مقابل کې هغسې الوتکې او دفاعي ځواک نه درلو اوس يې د ۵۲ او ډرون امريکايي الوتکو په مقابل کې هم مقايسوي جنګي وسلې او تجهيزات نلري ؛خو کوم عزم او پخې ارادې چې د شوروي يولک او شل زره لښکري ماتې او نابودي کړي اوس همدغه عزم او ارادي امريکا سره له ۴۷ مجهزو او پرمختللو هيوادونو سره چې يو نيم لک خارجي او ۴ لک داخلي قواوي ورسره مل دي د متعال رب په لوی نصرت دغم او تيښتې په درشل درولي او په دې لټه کې دي چې په کومه لار او پلمه خپل بګيل شوي او بيم زده عسکر له افغانستان څخه و باسي.

الله تعالی دې د حوت د ۳ نيټې د معصومو قربانيو او د روان اشغال په وړاندې د پاکو او مقدسو سربښندنو په برکت بهرني بلوسګر او د هغوی تاليختې د تل لپاره له خپلو شوم اهدافو سره نابود او شرمنده وګرځوي او الله تعالی افغانانو ته داځواک ورپه برخه کې چې په خپلو متو ديوه سوچه اسلامي نظام په پلوشو کې ژوند وکړي او د ارام ساه واخلي. امين

## زعفران؛ د هر مرض دوا

زعفران د اقتصادي ارزښت له مخې په نړۍ کې د لوړ قيمت لرونکو کرنيزو محصولاتو له ډلې شمېرل کېږي چې؛ د نورو محصولاتو په شان په کيلو ګرام او ټنونو نه پلورل کېږي، بلکې په ګرام او مثقال يې پېر او پلور کېږي. زعفران په غالب ګومان د مديترانې شرقي سيمې نباتاتو له ډلې شمېرل کېږي چې له دې ځايه يې کر کيله افغانستان کې هم رواج پيدا کړی، خو د ترويج او پراخيتيا لپاره يې لومړنۍ هڅې ۳۰ کاله وړاندې پيل شوې، خو بدبختانه د کورنيو جګړو پرمهال نيمګړې پاتې شوه .

اوسهمال د يو کيلو زعفرانو بيه په نړيوالو بازارونو کې څلورو او دولسو زرو ډالرو ترمنځ ده. په لرغوني او اوسني وخت کې د زعفرانو اکثريت مقدار د غذاګانو او مشروباتو د خوند، رنګ او بوی په ښه کولو کې او همدارنګه د ماشومانو لپاره په خوراکي توکو جوړولو کې ترې استفاده کېږي .

د زعفرانو په اړه تحقيقات ښيي، چې د مختلفو ويټامينونو او د بدن ضرورت وړ مختلف عناصر، منرالونه او شحمي موادو لري او په درملنه کې يې اغېز مثبت دی .

د زعفرانو په استعمال سره عصبي، هضمي او تنفسي سيستمونه د ځينو ناروغيو لکه د اعصابو ضعف، خستګي، درد، بې خوبي، کم خوراکي او تنفسي بې نظمي ورسره حلېږي. همدارنګه د پښتورګو او مثانې تېږې، د سرخکانو، تبې، زيړې، د زړه د لويوالي، د توري لويوالي، شکر او پوستکي ژير زخم، د سترګو خارښت، د کلمو درد او همداډول خوني اسهال، عضلاتي دردونو او سرطان ناروغيو لپاره په درملو کې ترې استفاده کېږي.
د ليدو او اوربدو قوت هم ډېروي او هغوی چې د زړه له رنځه ځورېږي د زعفرانو د استعمال توصيه ورته کېږي .

د زعفرانو د حاصل ټولو وخت کې بايد هڅه وشي څو (stigma) برخه ميده نه شي، که چېرې ميده شي نو خپل لوړ ارزښت له لاسه ورکوي. د يو کيلو وچ زعفران دلاسته راوړلو لپاره /۱۵۰۰۰۰تازه ګلانو ته ضرورت دی او د دې شمېر پوره کولو تکليف يوازې بزګر ته معلوم دی




# د شهید ملامحمدنعیم نافذ ژوند ته کتنه

عبد الـرؤف '' حکمت ''

داسلامي مبارزوبهیر اساسا دهغو ګمنامو اتلانو د کارنامو او جانبازیو مرهون دی ، چې موږ یې له نومونو ، ژوندلیکونو او څیرو سره آشنا نه یو ، دا یو حقیقت دی ، چې د تاریخ پاڼې تر ډیره دمشهورو او سر کرده اشخاصو په تذکرو راځرخي او هغه ګمنام اتلان یې په هر دور کې هیر کړي دي ، چې دانقلابونو په راوستلو ، کارنامو جوړولو او حماسو زیږولو کې یې لومړی لاس او مباشر رول درلودلی وي .

داسلامي تاریخ دغه اتلان که څه هم په دنیایي لحاظ نوموړ کي بلل کیږي ، مګر باور دادی چې دآخرت برخه به ددوی درنه وي ، ځکه دوی دالله تعالی حضور ته دخپل سوچه عبادت او خدمت پانګه وروړې ، چې دهیڅ ډول شهرت ، ریاء او ځانښودنې شائبه په کې نه شته .

په افغانستان کې داسلامي امارت قیام په معاصره اسلامي نړۍ کې یوه لویه پیښه وه ، په لومړي ځل له لسیزو وروسته دالله تعالی په ځمکه په صحیح معنی دیوه سوچه اسلامي نظام دنفاذ غږ پورته شو ، ددې ارمان دترسره کولو په لاره کې ډیرو متعهدو ځوانانو خپلې وینې نذرانه کړې ، هغوی چې خپل پور یې اداء کړ ، دحق دمعر کې میدان ته راغلل او لاړل ، داممکنه نه ده چې ددوی ټولو سوانح راغونډ او تدوین شي ، خو په دې باید اعتراف ولرو ، چې همدغه دحق دسنګر ګمنام شهیدان هر یو ددې حق لري ، چې امت یې یادونه په سینو کې ژوندي وساتي ، ځکه همدوی دي چې خپلې وینې یې داسلام ډیوې ته ور کړي دي ، خو په مقابل کې یې هیڅ دنیاوي خونبها ونه غوښته .

راځئ دهمدې قافلې دیوه بل لاروي شهیدملامحمدنعیم نافذ په ژوند او ژوند پیښنو سره وغږیږو .

## شهید ملامحمدنعیم نافذ

محمد نعیم نافذ د حاجي ګل محمد زوی دمرحوم سعیدجان لمسی په قوم پښتون /میراڼی په ۱۹۷۲ میلادي کال کې د روزګان ولایت دخاص روزګان ولسوالۍ په شیره نومي علاقه کې په یوه دیندار ه کورنۍ کې دنیا ته راغی . نوموړي خپل د کوچنتوب عمر په خپل کلي کې تیر کړ ، د کلي دمسجد له ملاامام څخه یې لومړنۍ الفباء ولوسته اووروسته دروزګان ولایت دمرکز ترین کوټ چرمستان سیمې ته لاړ او هلته یې په دیني مدرسه کې داخله واخیسته .

په همدې سیمه کې یې یو کال درس ووایه او وروسته دزابل ولایت د دایچوپان ولسوالۍ هزاربوز سیمې ته لاړ چې هلته یې په یوه کلیواله مدرسه کې دیني زده کړو ته دوام ور کړ ، په دې مهال چې په افغانستان روسي یرغلګرو برید کړی وو او په مقابل کې یې مسلح جهاد شروع وو ، ددوی کورنۍ له روزګان څخه دپاکستان دبلوچستان مسلم باغ سیمې ته هجرت وکړ او هلته یې دمهاجرو په یوه کیمپ کې دهجرت ژوند پیل کړ .

محمدنعیم نافذ چې دغه مهال نوی ځوان وو ، دپاکستان دبلوچستان په مختلفو مدارسو کې یې خپلو دیني زده کړو ته دوام ور کړ ، له دې جملې په مسلم باغ ، کویټه ، سرخاب ، میزی اډه او نورو سیمو کې یې له مشهورو استادانو څخه دیني کتابونه ولوستل تر دې چې دفنونو کتابونه یې خلاص کړل ، او د دوړې دورې تر درجې پورې ورسید .

د کمونیستانو په خلاف دجهاد په وروستیو کلونو کې نوموړي په لومړي ځل په جهادي عملیاتو کې برخه واخیسته ، چې دغه وخت

درو زګان ولایت دمشهور جهادي قومندان ملامحمد شفیق اخند په جبهاتو کې یې جهادي خدمت تر سره کړ .

### دطالبانو په اسلامي تحریک کې شمولیت او خدمت

دطالبانو داسلامي پاڅون دپیل په مهال ، هغه وخت چې دطالبانو لخوا بولدک نیول شوی ، ملامحمد نعیم نافذ په اسلامي تحریک کې شامل شو ، د کندهار له فتحې وروسته چې کله دنورو ولایاتو په خوا تشکیلات کیدل ، ملامحمدنعیم په هغه تشکیل کې وو چې دروزګان ولایت په خوا ولیږل شو ، په روزګان ولایت کې زیاتره پخواني جهادي قومندانانو دطالبانو داعیې ته لبیک ووایه او له اسلامي تحریک سره وصل شول ، خو یوازې محمدنبي ، معلم عبدالخالق او اختر محمد په نومونودري تنو قومندانانو مقاومت وکړ ، له دوی سره دروزګان دمرکز ترین کوټ په مربوطاتو کې جګړه وشوه ، چې ملامحمدنعیم په کې دیوه ګروپ مشر په حیث برخه درلوده ، دروزګان له فتحې وروسته ملامحمدنعیم داسلامي تحریک دمشرانو لخوا د دهراوود ولسوالۍ دامنیه قومندان په حیث وټاکل شو .

کله چې دطالبانو تحریک دغزني او کابل په خواپر مختګ وکړ ملامحمد نعیم هم ددې لښکر ملګری وو ، چې دغزني ، میدان وردګ او لوګر په جګړو کې یې برخه درلوده ، ترڅو دکابل دچهار اسیاب ښار ګوټي او دکابل ښار یو شمیر جنوبي سیمې دطالبانو لاس ته ورغلې ، نوموړي ته په دې مهال دریشخورو دفرقې مسؤلیت وسپارل شو ، او په همدې سیمه کې له خپلو جهادي ملګرو سره اوسیده .

په همدې سیمه کې یوه ورځ چې له ملګرو سره په جهادي دفاعي خط باندې ګرځیده ، ددښمن دهاوان مرمۍ دلګېدو له امله سخت ټپي شو ، چې دعلاج لپاره دجګړې له سیمې انتقال شو .

له علاج وروسته نوموړی بیر ته جهادي صف ته حاضر شو ، دغه وخت طالبانو هرات نیولی وو او دبادغیس په مربوطاتو کې جګړه روانه وه ، نوموړی دامیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد په فرمان دبادغیس دفاعي کرښې ته ولیږل شو او د کمربند مسؤلیت وروسپارل شو .

په بادغیس کې له څه وخت تیرولو وروسته چهار اسیاب ته راغی ، او همدلته تر هغه وخته په جهادي صف کې پاته شو ، ترڅو طالبانو کابل فتحه کړ ، دکابل د فتحې په مهال چې طالبان دمیدان ښار ، چهار اسیاب او پل چرخي له لورې په کابل ورننوتل ، نوموړی دچهار اسیاب په دفاعي خط کې وو ، چې د دری طرفه جګړې په نتیجه کې ددښمن دفاعي کمربندونه مات شول او طالبان فاتحانه کابل ته ننوتل .

### د کابل په شمال کې جهادي خدمت

دملامحمد نعیم نږدې ملګری او همسنګر ملاعبدالحنان وایي ، چې دکابل له نیولو وروسته نوموړی د کابل دشمال شکر درې په سیمه کې مسؤل وټاکل شو ، له هغه وروسته څه موده دکاپیسا ولایت ته لاړ او بیا دبګرام په دفاعي خط کې په خدمت بوخت وو .

ملاعبدالحنان وایي هغه وخت چې دمسعود له خوا دکابل دبیانیولو عملیات پیل شوي وو ، او طالبانو دبګرام په استقامت دکاریز میر ترسیمې پورې عقب نشیني کړې وه ، بلې خواته په شکر دره باندې هم سخت عملیات روان وو ، په همدې وخت کې چې حالات ډیر حساس وو ، دافغانستان ددفاع وزیر ملاعبیدالله اخند دجګړې کرښې ته راغی ، او ملامحمد نعیم نافذ ته یې وویل چې دشکر درې خط ته لاړ شي ، نوموړی له خپلو ملګرو سره دشکر درې خط ته لاړ چې هلته له څو ورځو جګړو وروسته ددښمن پرمختګ په ټپه ودرېد ، له دې وروسته نوموړی په شکر دره کې دقطعې مسؤل وټاکل شو ، او تر ډیره وخته یې په همدې سیمه کې خدمت تر سره کړ ، نوموړي د شمالي تقریبا په ټولو عملیاتو کې برخه درلوده .

هغه وخت چې ملامحمد نعیم په شمالي او کندز کې جهادي دنده تر سره کوله ، دګردیز ددریم نمبر قول اردو دقومندان په حیث مسؤلیت یې هم درلود ، خو څرنګه چې نوموړی همیشه په جنګي کرښو کې وو په قول اردو کې یې دنده په نیابت شهید ملاعبدالمنان او بیا شهید ملاپای محمد تر سره کوله .

### کندز ته او ښتل

د ۱۹۹۷ میلادي کال په مې میاشت کې دافغانستان په شمال کې ستر تحولات رامنځته شول ، په همدې میاشت کې دشمال یو مشهور قومندان جنرال مالک له طالبانو سره ملګری شو ، دنوموړي سره په ګډه طالبانو دمزار شریف په ګډون شمالي ولایات تر کنترول لاندې راوستل ، دغه راز دطالبانو بل لښکر د پروان څخه دسالنګ تونل په لاره بغلان ته ووت او

پلخمری ښار ګوتې یې ونیو، خو کله چې جنرال مالک له طالبانو سره غدر وکړ او دمزار شریف په شمول شمالي ولایات یې بیر ته ونیول په پروان کې مسعود برید وکړ سالنګ، جبل السراج او چاریکار یې ونیول چې په دې توګه دطالبانو زرګونه مجاهدین په بغلان کې کلابند پاتـه شول، طالبانو د نجات دیوازینی لارې په توګه په کندز برید وکړ، او دسیمه ایزو قومندانانو په مرسته یې کندز ښار ګوتې ونیو، چې په دې توګه یې د کندز دهوایي ډګر له لارې له کابل سره دهوایي تګ راتګ لار ومونده.

طالبان چې د کندز په مرکز کې په ډیره محدوده ساحه کې محاصره وه، او هره شیبه د تخار، بغلان او سمنګانو له اړخه دمخالفینو تر برید لاندې وو، په ډیرو سختو شرایطو کې یې شپې ورځې تیرولې، هیڅ داتمه نه درلوده چې له دې سختې محاصرې به روغ وځي همدا سخت حالات ددې باعث وو چې د کندز جهادي صف ته هیڅ د تللو زړه نه کاوو، په همدې مهال ملامحمدنعیم نافذ چې د کابل په شمال شکردره کې یې جهادي دنده تر سره کوله دملامحمد عمر مجاهد لخوا مأمور شو، تر څو دجهادي خدمت لپاره کندز تـه لاړ شي، نوموړي په پوره اطاعت دخپل امیر امر ته لبیک ووایه او دغه سخت مسؤلیت یې قبول کړ.

ملاعبدالحنان وایي، شهید ملامحمد نعیم خپل ملګري په کابل کې راغونډ کړل او ورته یې ویل چې ما ته ویل شوي دي چې کندز ته واوړم، په تاسو کې که هرڅوک تیار وي او له ماسره په خوښه ځي زه وربانديخوشاله کیږم امازمالخوااجبار نشته چې خامخا راسره لاړ شئ، په دې مهال یوازې ۱۱ تنه تیار شول چې له ده سره دې سخت سفر ته تیار شي، ملامحمد نعیم له همدې ۱۱ تنو ملګرو سره د طیارې په توسط کندز تـه لاړ، چې وروسته کله چې د کندز دجبهاتو مشر شهیدملادادالله اخند کابل تـه لاړ ملامحمد نعیم په کندز کې دعمومي جهادي مشر به صفت پاته شو.

دافغانستان د تعلیم او تربیې پخواني وزیر ملاامیرخان متقي چې هغه مهال یې په کندز کې دطالبانو په جهادي لیکو کې خدمت کاوو، وایي چې ملامحمد نعیم خورامنتظم او په حربي چارو پوهیدونکی سړی وو، د کندز دمحاصرې په مهال داحمدشاه مسعود ټول کوشش داوو چې په کندز کې طالبان له منځه یوسي، ځکه په کندز کې دطالبانو شتون نوموړي په کابل باندې لـه سر تاسري برید څخه منعه کاوو او ډیر ځواکونه یې په کندز کې بوخت وو، دهمدې لپاره مسعود او ملګري یې

هر دم په هڅه کې وو چې په طالبانو دمحاصرې کړۍ تنګه کړي، خو ملامحمد نعیم نافذ چې پر لپسې یې مقاومت او تعرضونو ته دوام ور کاوو نه یوازې په شا نه شو بلکې اضافه ډیرې سیمې یې فتحه کړې، او همیشه دپر مختګ په حال کې وو چې په دې توګه دمحاصرې ساحه ازادیدله.

ملاامیرخان متقي وایي، ملامحمد نعیم دمخابراتي ارتباط خوراښه او بریالی نظام جوړ کړی وو، چې همیشـه فعال وو، ملامحمـد نعیم فعال او متحرک سړی وو، چې اکثره وخت یې ۱۸ تر ۲۰ ساعته پوري کار کاوو، همیشه به په جنګي کرښو ګرځیده، او ددښمن دبریدونو ځواب ته اماده وو.

ملاعبدالحنان چې په کندز کې یې له ملامحمد نعیم سره جهادي ملګر تیا درلوده، وایي چې په کندز کې دجهادي مسؤلیت په مهال دملامحمد نعیم په مشرۍ د تخار اشکمش، دبغلان بورکه او نورې ګڼې سیمې فتحه شوې او مجاهدینو سترې بریاوې ترلاسه کړې.

## شهادت یې

په کندز کې له اوږده مسؤلیت تر سره کولو وروسته نوموړي ته په ۱۹۹۹ م کال کې یوځل بیا دکابل په شمال کې جهادي مسؤلیت وسپارل شو، داځل چې مخالفینو د کاپیسا په مربوطاتو کې عملیات پیل کړي نوموړي هڅه کوله، د تګاب او نجراب ترمنځ سیمه کې دمخالفینو په پوستو برید وکړي، مخالفینو چې سیمه په ځمکنیو ماینونو پوښلې وه، ملامحمدنعیم له خپلو ملګرو سره یوځای هڅه کوله دلارې په تصفیې سره مخ په وړاندې د تللو لاره خلاصه کړي، په همدې مهال چې ماین پاکان دلارې په خلاصولو بوخت وو، او دی له خپلو ملګرو سره دسر ک په غاړه انتظار وو، د دوه میلې یو موټر په ماین وخوت چې په درانه انفجار کې ملامحمدنعیم اخند هم سخت ولګید او ځای په ځای په شهادت ورسید.

انالله وانا الیه راجعون

ملامحمدنعیم نافذ چې دشهادت په مهال ۲۷ کلن وو جسد یې د روزګان ولایت دمرکز مربوط په چرمستان سیمه کې خاورو ته وسپارل شو.

ملامحمد نعیم نافذ چې ډیر عمر یې په دیني تعلیم او جهاد کې تیر کړی وو نـږدې ملګري یې وایي چې په دې دواړو ډګرونو کې دښـه استعداد خاوند وو، چې په علمي پانګه سربیره یې ښه شجاعت او تدبیر هم درلود.

ملاامیر خان متقي چې شهید ملامحمد نعیم یې له نږدې پیژاند وایي ، چې نوموړی د حسنه اخلاقو څښتن اودمشر انوقدر پیژندونکی شخص ووبهترینه خاکساري یې درلوده اوله تکبره دومره لیرې وچې

یوه ورځ دتخارولایت دبنګي په سیمه کې له دښمن سره سخت جنګ روان و چې په دې وخت کې شهید ملا محمد نعیم نافذ هم دجګړې ډګر ته راور سید دده په راتلو سره په مخابرو کې ناري شوې چې نافذ را غی ددښمن خواته هم په مخابرو کې همدا اوازه خپره شوه چې ور سره دښمن دتیښتې لاره خپله کړه او میدان یې پرې ښود شهید نافذ چې دا هر څه په غوږونو اوریدل او په ستر ګوېې لیدل نو بې اختیاره یې په ستر ګو کې او ښکې راغلې او ویې ویل چې زه څوک یم زه خو دیوه غریب سړي زوی یم ، مګر داچې دحق صف ملګری یم الله تعالی دهمدې حقانیت له بر کته په دښمن داسې رعب ګډ کړ .

ملا ولي جان چې دملامحمد نعیم نافذ کشر ورور دی ، وایي چې ملامحمد نعیم له بیت المال سره خورا ډیر احتیاط کاوو ، او دبیت المال هیڅ پیسه یې په کور کې نه مصرف کوله.

ملا ولي جان وایي هغه مهال زموږ ژوند دغربت ژوند وو ، یو وخت مې ملا محمد نعیم ته د کمزوري اقتصادي حالت شکایت وکړ ، ده راته وویل له ماسره دبیت المال خورا زیاتې پیسې دي ، چې په شخصي ضروریاتو یې مصر فولای شم ، خو زه له الله تعالی څخه ویریږم ، که زما منې همدادفقر ژوند ښه دی ، دغه پیسې که بې له اجازې څخه په شخصي ډول مصرف کړو نو دقیامت په ورځ به زموږ لپاره سور اور وي ، ملا ولي جان وایي نوموړی به چې کور ته راتلو نو دامارت دمشر تابه لخوا ور ته د کور دمصارفو لپاره ځانګړې پیسې ور کول کیدلې چې ده یوازې هغه ماته راکولې ، او ویل به یې چې دغه د کور دمصارفو لپاره راکړل شوي دي ، دبیت المال له نورو پیسو سره یې ډیر احتیاط کاوو .

د ملامحمد نعیم نافذ تر شهادت وروسته دنوموړي نږدې جهادي ملګری ملاعبدالرزاق دده په ځای وټاکل شو ، چې وروسته هغه هم دنافذ په نامه خورامشهور شو او سترې کارنامې یې تر سره کړې ،ملاعبدالرزاق نافذ په روزګان ولایت کې دامریکایي یرغل په وړاندې جهاد پیل کړ ، چې تر اوسه یې لاجهادي ملګري او همسنګران په جهادي مبارزه بوخت دي .

## د بادامو له پریمانه ګټو به خبر نه یاست!

د ژمي پـدې یخو شپو ورځـو کې بـادام د هغـو وچـو میـوو لـه ډلـې دی ، چـې هـم خونـد لـري او هـم پریمانه ګټې .

د بـادامو لـه پریمانـه ګټـو یـو څـو یـې لـه تاسـو سـره شریکوو :

- د بادامو غوړي د نـورو غوړیـو پـه شان خرابیـدو والا ندي او د ماشومانو لپاره ډیر ګټور بلل کیږي .
- د بادام شیره د ټوخي ناراحتي او د ستوني لپاره ګټور ثابت شوي دي .
- بـادام ، چې اوړه شي او لـه شیدو سـره ګـد شـي د بډوډو او پښتورګو د درد لپاره ښه درمل دي .
- بادام جنسي قوه ځواکمنوي او سپرم زیاتوي ، همـدا رنګه معده قوي کوي .
- د بادامو غوړي د ماشومانو د اسهال لپاره هم ګټور دي .
- د بادامو غوړي خوب راوستونکي دي او بې خوبي لـه منځه وړي .
- بادام د مـلا د فقـرو لپـاره ګټـور دي ، کـه مـلا مـو درد کوي ، د درد د تسکین لپاره بادام وخورئ .
- د هغو ماشومانو لپاره ، چې پربـدن یـې سـرې دانـې وي ، د بـادامو پـر تیلـو یـې د ټـول ځـان غـوړول کولای شي هغوی ته ګټه ولري او پدې سره به یې په اسانۍ درملنه هم وشي .
- د بادامو غوړي د پوستکي د وچیدا یا سو ځیدلي پوستکي لپاره ډیر ګټور دي

# انتخابات اود

# یرغلګرو دریمه دروغژنه لوبه



راتلونکي انتخابات (انتصابات) د امریکا او ناټو د دیارلس کلن یرغل په موده کښې دریمه دروغژنه لوبه ده، په لومړي ځل چې کله دغه د دیموکراسۍ اتڼ په ۲۰۰۴ز کال کې پیل شو، لوبه په خورا ډراماتیکه توګه د کرزي په ګټه پایته ورسیده؛ ځکه په هغه وخت کې یرغلګر پر حامد کرزي د مجازي عاشقانو په څیر راګرم وو، هغوی یوازې او یوازې په ده کښې دا لیاقت لیدو چې په جمهوري ماڼۍ کې د استراحت پر تخت کښیني، د هغوی له نظره له نوموړي پرته هیڅ هم دارګ د بې تخت و تاجه پاچاهۍ وړتیا نه لرله.

مګر د لوبې په دوهمه مرحله کې د امریکایانو په نظر کښې د پخوا په پرتله ۱۸۰ درجې بدلون راغلی و، د امریکا متحدو ایالتونو د دفاع د پخواني وزیر (رابرت ګیتس) د کتاب په حواله د ۲۰۰۹ز کال په انتخاباتو کې هغوی د کرزي په خلاف لاس وهنه وکړه، او په لوی لاس یې د انتخاباتو ګرېبدلې بګۍ د دوهم پړاو کندې ته ورټیل وهله، بالآخره د کرزي له څو میاشتو چیغو، بغارو او نادریو وروسته امریکا مجبوره شوه، او د تقلبي انتخاباتو نتیجې یې ومنلې، او عبدالله عبد الله هم د هغوی له امر سره سم له مقابلې نه تیر شو.

اوس بد نام یرغلګر (امریکا او ناتو) خپلې شرمنده ماضي او تیرو درغلیو ته په کتو ټینګ قسمونه خوري، چې د راتلونکي ۱۳۹۳هش کال د حمل د ۱۶ نیټې په انتخاباتو کښې به هیڅ درغلي نکوي، او نه به د کوم کاندید ملاتړ کوي، خو د هغوی په قسمونو به باور څوک وکړي؟ حامد کرزي او عبدالله عبد الله ته خو د هغوی دروغژنه څیره ښه معلومه ده، په لومړي ځل یې د اول او په دوهم ځل یې د دوهم لپاره په پراخه پیمانه درغلۍ وکړي، دا نورو کاندیدانو ته هم ښه روښانه ده چې د پړې سر د چا په لاس کې دی!

د غربي دیموکراسۍ او بین المللي قوانینو له نظره انتخابات هغه وخت د اعتبار وړ دي کله چې په هیواد کې حالات نورمال وي، سیاسي استقلال، د امن او سولې چاپیریال وجود ولري، د هیواد چارې د یو ملي حکومت په کنترول کې وي، پر ځمکه او فضا د دولت حاکمیت وي، پوځي او ملکي تاسیسات، پوځي او ټولنیز ابزار، نشراتي وسائل، استخباراتي سیستم د دولت په ولکه کښې وي. راتلونکي انتخابات ځکه د اعتبار وړ نه دي چې د دیموکراسۍ شعار او د سر سره کرښه داده چې: ولس د خپل اختیار خاوند نه دی؛ ځکه د اشغال په حالت کې د خلکو د ژوند اصلي حقوق تر پښو لاندي وي، ازادي نه وي، عدالت نه وي، اختیار نه وي، د هیڅ وګړي ځان، مال او ناموس محفوظ نه وي، د ګډا نه تر پاچا پورې ټول د یرغلګرو قواو تر مستقیم تهدید او رهنمایۍ لاندې وي.

که بالفرض دا و منل شي چې: یرغلګر او د هغوی ګوډاګیان په انتخاباتو کې هیڅ درغلي نکوي، افغان ولس هم په خپله خوښه په ټاکنو کې ګډون وکړي، د کاندیدانو له منځه یې د یوه پر سر تاج کېښود، دارګ په تخت یې کښیناوه، له یوه لوري یرغلګرو د هغه تود هر کلی وکړ، له بل طرفه دګڼو هیوادونو جمهور رئیسانو د هغه په نوم د تبریکۍ پیغامونه واستول، آیا د اشغال د دوام په حالت کې به د نوي ولسمشر او کرزي په مینځ کې څه توپیر راشي؟ که فرض کړو چې دا انتخابات یونیک او له فساده لیرې شخص وګټي او د ریاست جمهورۍ ماڼۍ ته ننوزي، آیا د افغان ولس لپاره به کوم د قدر وړ خدمت وکړای شي؟ نه، هیڅکله هم نه، دا سمه ده چې په ماڼۍ کې دننه به د بدو عملو پر ځای ښه کارونه کوي: تلاوتونه به کوي لمنځونه به کوي او داسې نور، خو دارګ څخه د باندې به د پردیو حکم چلیږي او د نوي ولسمشر به د کرزي په څیر یوازې چیغې او بوغې اوریدل کیږي، د عمل په ډګر کې به په صفر کې ضرب وي، دا نو بیا هغه دچا خبره تاج نشو بلکې د ګیدړې قباله شوه.

# د سفرنامو او د پیښو لیکلو ارزښت

قاري محمود غزنوي

له ډېرې پخوا زمانې څخه د سفرنامو (سیلګري) او مشهورو پېښو لیکنه دود او دستور ده، له چیني (ماهیان)، جرمن او نورو نامسلمان سیلګرو څخه پرته د اسلامي نړۍ مسلمان سیاحانو لکه ابن بطوطه، ابن جبیر، ابن فضلان، ناصر المروزي او نورو هم په زرهٔ پوري سفرنامې په ګڼو جلدونو کې لیکلي دي. په همدا سې توګه اوس مهال د نورو لیکوالانو سربېره مشهور عالم تقي عثماني صاحب هم د ګڼو هیوادونو حالات د سفرنامې په بڼه په ښه توګه انځور کړي دي. دې عمل ته په پښتو کې "ګرځښت" یا "سیل سیلګري"، عربي کې "رحلة" او په انګریزي کې Tour ویل کېږي، خو زموږ په ټولنه کې ترینه په عامه توګه تعبیر په سیاحت کېږي او قرآن کریم ترینه تعبیر په "سیر" لفظ سره کړی، الله تعالی انسانانو ته فرمایي: تاسو په ځمکه ګرځښت او سیل تر سره کړئ، تر څو تاسو ووینئ چې سرکښان له څرنګه برخلیک سره مخ شوي دي [سِیرُوا فِي الأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ].

ځیني کسانو د ګرځښت په موخه د نړۍ ګڼو برخو ته سفرونه کړي دي او ځینو نورو بیا د خاص مقصد یا سیاحت په موخه یوه ځانګړي سیمه انتخاب کړي، بهر تقدیر دوی د هغو هیوادونو او سیمو په اړوند خپلې سفرنامې لیکلي. بظاهر دا ډول سفرنامې د دوی د سیاحت، ګرځښت، مقصد او سیلګري راپور ښکاره کېږي، ولې حقیقت کې بیا له څه وخت تیریدا څخه وروسته یو تاریخي سند ګڼل کېږي، چې له هغې څخه تاریخ پوهان او جغرافیه پوهان په زړه پوري موخې جوتوي.

د همدې سفرنامو په مټ موږ کولای شو، د سیمو، غرونو، دریابونو، لارو او ګودرو لرغونوالی او تاریخي قدامت ثابت کړو، دا چې د هغه مهال او د اوس مهال په نومونو کې تر کومه بریده توپیر لیدل کېږي، موږ معلومولای شو چې د سفرنامې د سفر کونکې په مهال هلته میشت پخواني قومونه له څرنګه برخلیک سره مخ شوي؟ هلته چا یرغل کړی یا یې کړی وو؟ د هغه سیمې ګروهه څه وه؟ هلته د کومې ګروهې اغیز زیات وو؟ هلته د کوم پاچا پاچاهي وه؟ هغه د څه وړ شخصیت څښتن وو؟ هلته د نورو ګروهو له خلکو سره څه وړ کړه وړه په ډاګه کیدو؟ د هغه سیمې کلتور او عنعنات څه وو؟ تر دې پوري چې په ګڼو سفرنامو کې د سیمې د خلکو لباس، خوراک او څښاک ته هم اشارې شوي وي، د هغوی نسب او قوم پکښې نغښتل شوی وي، د هغوی میلمه پالنه او ځوانمردي په ډاګه کړې شوي وي.

د همدي سفر نامو په برکت موږ کولای شو، چې د لیکونکې همعصره او د سسیمې مشهور اشخاص معلوم کړو، له کومو سره چې د سفر په اوږدو کې لیدني کتنې تر سره شوي دي، همدا سفرنامې د یو قوم او سیمي مثبت او منفي غبرګون د اقلیت او اکثریت وګړو شتون په ډاګه کوي.

له دې امله چې سفر کوونکې خپله سفرنامه له سیاسي، قومي مذهبي تعصب څخه پرته یواځې د یاداښت په توګه ښکلې وي، نو ځکه د یو پیاوړي سند په توګه بدرګه کیږي.

زموږ په هیواد کې له پیړیو پېړیو را هیسې او په ځانګړې توګه د انګریزي، شوروي او اوس مهال د صلیبي یرغل په اوږدو کې چې له پنځوسو څخه زیاتو هیوادونو زموږ په ګران هیواد یرغل کړی، هره ورځ او شپه داسې پېښې تر سره کیږي چې د تاریخ په څپو کې یې بېلګه نشته، هره لحظه او هره لمحه، هره لړۍ او ګړۍ په لیکلو ارزي او د لیکلو اړتیا لري، نو زما په فکر ټولو مسلمانانو او په ځانګړي توګه د قلم څښتنانو افغانانو اوبیا په ډیره خصوصي توګه د اطلاعات او کلتور ملګرو ته پکار دي، چې روانې پېښې او غمیزي، سربښندني، کارنامې او اتلوال بریدونه، د مجاهدینو بریاوي، په دښمن مرګونې ګزارونه او د دښمن ظلمونه او تیري د راتلونکې نسل د پوهاوي لپاره له کوم تعصب، کرکې، زیاتي او کمې څخه پرته خوندي کړي، اړونده سیمو ته د کره معلوماتو د لاسته راوړلو په موخه قصدا سفرونه وکړي او د دښمنانو له اغیز څخه پاک د خپلو سترګو لیدلي حقائق د تاریخ غیږي ته په ډېر صداقت وسپاري، چې دا به یې له اسلام او خپل هیواد سره د زړه له کومې د مینې او محبت څرګندوی وي.

## که کبان نه خورئ ګلپي وخوره !

ګلپي او ددی کورنی نباتات چی د ژمی په موسم کی پیداکیږی د انسانانو روغتیالپاره دیره ګټوره سبزی ده چی په مشرقي کی د ګلپیانو د کښت له مخی ننګرهاراو کنړ ولایتونه دیر مشهور دی. علماو د ګلپی اصلی منشا دمدیترانی شمال شرقی سیمی په نښه کړی چی بیاله دغه ځایه د نړی نورو هیوادونو ته د دغه نبات کر کیله غځیدلی ده چی اوسهمال ګلپیانو څخه اکثره خلک په مختلف ډول استفاده کوی لکه د اچارو، سوپ په جوړلو او همدارنګه یو شمیریی د کتغ په غرض پخوی دخامو ګلپیانو خوړل نسبت پاخه شوی ګلپیانوته دیره ګټه لری اوسنیو څیړنو ثابته کړی ده چی ګلپی او ددی کورنی نباتات دانیدول ۳-کاربینول، سولفورافان او ګلوکوزینولات مادو په درلودو سره د سینی سرطان او همدارنګه یو شمیر نور سرطانونه چی په ښځو کی پیداکیږی په مخنیوی کی دیر موثر دی که څوک د زړه د ناروغي څخه رنځ وړی نو ګلپيAllicin مادهلری او د زړه حملی کچه راټیټوی ګلپی اومګا ۳ چی عموماً په کبانو کی دغه ماده دیره موندل کیږی په ګلپیانو کی هم شتون لری چی په بدن کی د مرضونو د پیداکیدو مخنیوی کوی ګلپی دیر وزن لرونکو کسانو لپاره د وزن په کمولو کی مرسته کوی نو ورته پکار ده چی د خوړو په ورځینی مهالویش کی دغه سبزی باید اضافه کړی همدارنګه اوسنی تجربو داهم ثابته کړی چی ګلپی د حافظی په قوی کولو کی هډوکو دجوړنو ددرد، اود قبض ور کولو کی کی مرسته کوی ګلپی د بدن ورځینی اړتیا وړ ویټامینونه لکه د B کورنی ویټآمینونه او A ، Cویټامینونه او د ضرورت وړ کاربوهایدریت او منرالونه پوره کوي . د ګلپیانو دطبعی ګټو ترڅنګه هغه کسانو ته مضر دی چی د بډوډو تیږی ولری او هغی د شدت څخه رنځ وړی .ګلپی زیات خرابیدونکې یا فاسدیدونکې سبزي ده او د ډیر وخت لپاره نشی ساتل کیدي نو پکار چی په کور کی ګلپیان باید په یخچال او یا یخ ځای کی د ۳ څخه تر ۴ ورځو زیات ونه ساتل شی او پوخ شوی ګلپی هم باید د یوی ورځی زیات ونه ساتل شی ګلپی باید د هغه سبزیجاتو او میوو سره یو ځای ونه ساتل شی لکه مڼې، کیلې، خټکې یا رومیان ځکه دوی د ایتایلین ګاز تولیدوي چی په پایله کی ګلپی خرابیږی د ګلپی اخستلو وخت کی باید پاملرنه وشی چی بی رنګه ،ژیړ او تور شوی نه وی او د کوچنی ګلانو لرونکی ګلپی لرونکی نه اوسی.

# هو! راتلونکی ولسمشر به رښتیا هم د امریکایې ګټو ساتونکی وي

شریف شاهین

اوس امریکا دا خبره نه پټوي چې د کابل راتلونکی ولسمشر به نه یوازې له ځنډ پرته امنیتي تړون لاسلیک کړي، بلکې هغه به د امریکا د ګټو یو غوره ساتونکی هم وي. په افغانستان کې د ولسمشرۍ ټول کاندیدان په زغرده وایي چې که واک ته ورسیږي له امریکا سره به امنیتي تړون له ځنډ پرته لاسلیک کړي. هر کاندید هڅه کوي چې امریکا ته خپل د غلامۍ غوښتنلیک وړاندې کړي او ورته ووایي چې ستاسې سره پرته له شرایطو تړون لاسلیکوو.

که له یوولسو کاندیدانو هر یو بریالی شي، د امریکا ګټې خوندي کیږي، خو داسې ښکاري چې امریکا له وړاندې هغه کس انتخاب کړی چې په راتلونکي کې به د کابل ولسمشر وي. دغه خبره اوس د امریکایي چارواکو په خبرو کې روښانه ښکاري. موږ دلته د امریکا د استخباراتي ادارې د مشر خبرې را اخلو. د امریکا د استخباراتي ادارې مشر وایي، چې ولسمشر حامد کرزی به تر ټاکنو مخکې له واشنګټن سره امنیتي سند لاسلیک نه کړي، خو راتلونکی ولسمشر به یې لاسلیک کړي. د (سي ای اې) مشر جیمز کلاپر دغه څرګندونې دوې ورځې وړاندې د امریکا کانګرېس ته کړې دي. نوموړي په نړیواله کچه امریکا ته د رامنځته کېدونکو ګواښونو په اړه د سنا او کانګرېس د غړو پوښتنو ته ځوابونه ورکول. کلاپر د کابل او واشنګټن تر منځ پر امنیتي سند د لاسلیک په اړه د یوې پوښتنې په ځواب کې وویل: ((زه باوري نه یم چې ولسمشر کرزی به دغه سند لاسلیک کړي.)) کلاپر په ښکاره ټکو وویل: ((د کرزي ځای ناستی به نه یوازې دغه سند لاسلیک کړي، بلکې د امریکا لپاره به ډېر د باور سړی هم وي((.

د کلاپر له دغو څرګندونو ښکاري چې د کابل لپاره ولسمشر له وړاندې د امریکا له خوا ټاکل شوی دی. دغه ولسمشر چې هر څوک وي، د امریکا ګټې به خوندي کوي او د افغانستان په پرتله به امریکا ته ډېر وفادار وي. له همدې امله کلاپر په ډاډ سره وایي چې راتلونکی ولسمشر به هم تړون لاسلیک کوي او هم به د امریکا باوري دوست وي.

په افغانستان کې د امریکا نظامي او سیاسي حضور، په افغانستان او سیمه کې د امریکا اهدافو او بیا د کلاپر څرګندونو ته په کتو سره دا خبره یقیني ده چې دلته چې هر څوک ولسمشر کیږي، تر بل هر څه باید امریکایي ګټو ته ډېر وفاداره وي. نو چې کله دلته داسې څوک نه ځان کاندیدولی شي او نه هم بریالی کیدلای شي چې د امریکا ګټې ورته تر هر څه با ارزښته نه وي. په داسې حالاتو کې ټاکنې او د خلکو اراده بې معنی کیږي او دا هغه زړه شوې سندره ده چې امریکا پرې کلونه کلونه خلک غولولي او استعمار ته یې تدوام ور کړی دی.

نه یوازې له شرعي اړخه ددغه ډول ټاکنو مشروعیت، بلکې له سیاسي اړخه هم اوس دا روښانه ده او خلک پرې پوهیږي په افغانستان کې ټاکنې د افغانستان د خلکو د ارادې څرګندونه نه شي کولی، بلکې دا یوازې ددې لپاره ده چې امریکا، نړۍ ته وښیي چې دلته مشروع او منتخب حکومت دی. خو رښتیا دا ده چې افغان ولس لا هم په ټاکنو کې پوره برخه نه اخلي. دوی اوس پوه شوي چې په اشغال کې د دوی اراده هیڅکله ځای نه نیسي او د دوی لپاره دا خورا مهمه ده چې له استعمار څخه ځان خلاص کړي.

د مؤسسو او شرکتونو د کنترول او تنظیم د کمیسیون محترم مسئول مولوي احمد بلال:



# بشري مرستې، عام المنفعه او رغنیزې چارې باید په ټول هیواد کې بې توپیره تر سره شي

له هرڅه وړاندې درته هرکلی وایو، او مننه کوو چې له ټولو ورځنیو مصروفیاتو سره سره مو زموږ غوښتنه ومنله، ترڅو مو پوښتنو ته ځواب ووایاست.

د کمیسیون رئیس:

الحمد لله و الصلوة و السلام علی رسول الله و علی آله و اصحابه و من والاه و بعد

ترهرڅه وړاندې تاسو او لوستونکو ته خپل مسنون سلامونه وړاندې کوم له تاسي څخه هم د زړه له کومي مننه کوم چي موقع مو راکړه تر څو درنو هیوادوالو او لوستونکو ته د مؤسسو او شرکتونو د کنترول او تنظیم د کمیسیون د تاسیس، اهدافو او فعالیتونو وضاحت وکړم.

**پوښتنه**: ستاسو کمیسیون د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د کومو اهدافو لپاره ایجاد شوی او څه ډول ترکیب لري که یې لطفا تشریح کړئ؟

**ځواب**: تاسو ته معلومه چې په افغانستان دامریکایي یرغل څخه وروسته زموږ په هیواد کې جنګي حالت حاکم دی، او امریکایانو په افغانستان یو داسې حکومت تپلی چې په ټوله نړۍ کې په فساد کې لومړۍ درجه ځای لري، دهمدې فاسد رژیم ترسیوري لاندې نورو لوټماریو، غصب او اختلاسونو سربیره دبشري مرستو په برخه کې هم لویه بې انصافي روانه ده.

هغه داچې له یوې خوا زموږ جګړه ځپلي ولس د ژوند په هر پړاو کې له مختلفو ستونزو سره مخامخ دی او لاسنیوي ته اړ دی له بله پلوه همدا زموږ د هیواد والو د مرستي په نامه چي هیواد ته څه هم را ورسیږي نو زیاته برخه یې د بهرنیو مؤسسو د اداري پرسونل په معاشاتو، د لوکسو او مجللو قصرونو په کرایو، د نویو ماډلونو موټرونو په رانیولو او د دوی د دفتري لوازمو په کش او پش لګیږي، کومه برخه چي بیا کومي پروژي ته رسیږي د هغي ډیره حصه هم د نوموړو مؤسسو او یا هم دکابل د ګوډاګی اداري د فاسدو چارواکو جیبونو ته ځي، د دي لپاره چي د غه مرستي باید دضرورت وړ ځایونو کي ولګیږي او همدا ډول د دښمن له لوري د مرستو په نامه د مغرضانه فعالیتونو مخه هم ونیول شي، دافغانستان اسلامي امارت وپتییله چي دمؤسساتو او شرکتونو دکنترول، د هغوی د فعالیتونو د تنظیم او د هغوی دمصارفو د پرځای لګیدو په منظور په خپلو تشکیلاتو کي ځانګړی کمیسیون ولري.

په لنډو ټکو کي به د کمیسیون د لائحي د دوهمي مادي په یادولو سره د سوال د دي برخي ځواب را خلاصه کړم:

دوهمه ماده: د مؤسسو او شرکتونو د کنترول او تنظیم کمیسیون د افغانستان د اسلامي امارت له لوري په هیواد کي مؤسسو او شرکتونو ته دضرورت په اساس د فعالیت د

اجازي ور کولو، تنظیم او څارني په غرض رامینځ ته شوي اداره ده.

د دي کمیسیون د تشکیلاتو په هکله باید یادونه وکړم چي: په راس کي یي رئیس، مرستیال او ور سره تجربه لرونکي اعضاء، اداري او مالي څانګه، د رغنیزو چارو د تنظیم څانګه، د مخابراتي شبکو د تنظیم څانګه، د عمومي اړیکو څانګه او په ټولو ولایتونو کي نمایندګي.

**پوښتنه** : ستاسو کمیسیون تراوسه پوري په هیواد کي کوم او څه ډول فعالیتونه ترسره کړي؟

**ځواب** : د مؤسسو او شرکتونو د کنترول او تنظیم کمیسیون وکولای شول چي د هغو خپل سریو مخه ونیسي چي د یو شمیر غیر مسؤلو افرادو له لوري به د اسلامي امارت او یا هم د طالب په نامه له مؤسسو او یا هم د تلیفون له کمپنیو سره تماسونه نیول کیدل او په یو او بل ډول به یي هغوی تهدیدول او خپلي ناروا غوښتني به یي ترسره کولي چي په دي کار سره له یوي خوا د عام المنفعه چارو په وړاندي ډیري ستونزي را ولاړي شوي وي، د بشري مرستو رسیدګي ستونزمنه شوي وه، د ولس اړو خلکو ته څرنګه چي لازم وو اسانتیاوي نه وي له بلوه پلوه داسي ناوړه تبلیغات هم کیدل چي ګواکي اسلامي امارت په هیواد کي د پرمختګ مخنیوی کوي، خو لله الحمد د کمیسیون په جوړیدلو سره د دي ډول ګډوډیو مخه ونیول شوه، موږ وکولای شول چي د خپلو منظمو تشکیلاتو له لاري په ټولو ولایتونو کي د استازیو په درلودلو، هغوی ته خپل کاري لوائح او منظم پروګرامونه تهیه کړو او د چارو په هره برخه کي د ځانګړو لارښوونو په ورکولو سره په لومړي سرکي د هر ډول ګډوډیو او خپل سریو مخنیوی وکړو او په دوهم پړاو کي د ټولو مرستندویه مؤسسو، خصوصي شرکتونو او مخابراتي شبکو د کار او فعالیت په هکله دقیق معلومات راټول کړو او بیا یي څارنه ترسره کړو ترڅو ټولګټي چاري په ښه ډول سمبال شي او مرستي اړو خلکو ته ورسیږي، اوس په ډاډ سره ویلای شو چي د تیرو کلونو په پرتله ښه مثبت بدلون ترسترګو کیږي.

**پوښتنه** : تاسو په هیواد کي له ټولو مؤسساتو سره په اړیکه کي یاست؟ د هغو کارونه څارئ او مراقبت یي کوئ؟ او که د ځینو سره رابطه او تماس لرئ؟

**ځواب** : د مؤسسو او شرکتونو د کنترول او تنظیم کمیسیون له مؤسسو او شرکتونو سره کومي ځانګړي موافقي او تړونونه نه لري البته د اړتیا په صورت کي د تماس لپاره عمومي نماینده لري چي څلرویشت ساعته د تلیفون په لین ور سره اړیکه ټینګیدلای شي او ټول اړوند لوري کولای شي خپلي غوښتني او ستونزي له همدي لاري تر موږ پوري ورسوي.

البته د کار ترتیب داسي دي چي په هر ځای کي کومه پروژه تطبیقیږي نو تر منظوري وروسته د سیمي د ولسي مشرانو له لوري د اړوند ولایت د ولایت جهادي مسؤول په عنوان د کار د پیلیدلو لپاره د اجازي عریضه لیکل کیږي، د مؤسسو او شرکتونو د کنترول او تنظیم د کمیسیون د ولایتي نماینده له تائید وروسته که د ولایت جهادي مسؤول ورسره موافقه وکړه نو موضوع د کمیسیون په غونډه کي تر بحث لاندي نیول کیږي او تر دقیقي څیړني وروسته د کمیسیون د لائحي د اتمي مادي په رڼا کي ورته اجازه لیک ورکول کیږي او بیا یي د پلي کیدلو چاري د ولایتي نماینده له لوري تر تکمیل پوري څارل کیږي ترڅو د هر ډول درغلی مخه و نیول شي او کار په ښه کیفیت ترسره شي، د کار له تکمیل وروسته یي بیا هم کمیسیون ته خبر ورکول کیږي.

**پوښتنه** : ستاسو لخوا هغه کوم کارونه دي چي مؤسسات یي د کولو اجازه لري او کوم دي چي اجازه یي نه لري، که راته واضح یي کړئ؟

ځواب: اسلامي امارت کله هم د هیواد د رغوني، آبادۍ او پرمختګ مخالفت نه دی کړی ټول هغه جهتونه چي غواړي په سمه توګه زموږ د ولس د هوساینې په غرض هر

ډول رغنيزي چاري او بشري مرستي تر سره کړي نو په وړاندي يې هيڅ ډول ممانعت نشته ، دوی کولای شي چې د ورته وضع شويو قوانينو په نظر کي نيولو سره په ډاډمنه توګه خپلي چاري پرمخ بوزي ، په دې اړه د کميسيون دلايحې دريمه ماده داسې صراحت لري:

( د مؤسسو او شرکتونو د کنټرول او تنظيم کميسيون مسؤليت لري چې د اسلامي امارت د فرامينو او ورته وضعه شويو اصولو په رڼا کې د مؤسساتو او شرکتونو له لوري د بيارغاوني او مرستو په نامه هغو ټولګټو او عام المنفعه فعاليتونو ته اجازه ورکړي چې د اسلام او وطن په ګټه وي او دهغو فعاليتونو مخه ونيسي چې د دين او هيواد په تاوان او د روان جهادي بهير په ضرر وي )

البته يو شمير بهرنۍ اداري د خيريه او مرستندويه مؤسسو تر عنوان لاندي د اسلام د مقدس دين په خلاف فعاليتونه لري او غواړي زموږ مؤمن ولس په تيره بيا تنکي ماشومان او زلميان د نصرانيت او نورو باطلو عقائو لور ته دعوت کړي ، نو د دا ډول نا مشروع هلو ځلو مخنيوی بيا د مؤسسو او شرکتونو د کنټرول او تنظيم کميسيون د خپل مسؤولت او دندي له مخي خپله فريضه ګڼي چې همدي خبري ته د لائحي په څلورمه ماده کي داسي اشاره شوي ده:

( هغه مؤسسات چي غير اسلامي نظرياتو ته دعوت کوي لکه يهوديت ، نصرا نيت او داسي نور.. او دمجاهدينو په ضد فعاليت کوي هغوی ته مطلقا اجازه نشته، د مؤسسو او شرکتونو د کنټرول او تنظيم کميسيون به يې په خپل ټول قوت سره د فعاليت مخنيوی کوي . )

**پوښتنه** : تاسو پوهيږئ چې د مؤسساتو له فعاليت سره جوخت يو شمير هيودوال له مؤسساتو سره کارکوي، نو ستاسو د پاليسۍ له مخې افغانانو ته په مؤسساتو کې د کار اجازه شته او که نه ؟ او که ځواب هو وي نو په کومو برخوکې او له کومو مؤسساتو سره افغانان کار کولای شي؟

**ځواب** : اسلامي امارت له هغو مؤسسو سره چي يوائي او يوائي د بشري خواخوږی په بناء عام المنفعه چاري پر مخ بيايي زموږ د هيوادوالو د کار په کولو کي کومه ستونزه نهويني البته له بهرنيو خيريه مرستندويه مؤسسو سره کارکوونکي افغانان بايد خپل اسلامي او ديني مقررات او افغاني عنعنات په پام کي ونيسي ځکه د يوه مسلمان او افغان په صفت دا د دوی اسلامي او ملي وجيبه ده.

**پوښتنه** : که کله مؤسسات ستاسو غوښتني يا هغه طرز العمل چې د مؤسساتو لپاره يې لرئ عملي نه کړي او سر غړاوي ترې وکړي ، بيا تاسو څه ډول برخورد ورسره کوئ او ايا د هغو کارونه بندولای شئ؟

**ځواب** : کومي مؤسسي او يا هم شرکتونه چې د اسلامي امارت د مؤسسو او شرکتونو د کنټرول او تنظيم د کميسيون له مقرراتو او اصولو سرغړونه وکړي او يا هم د کومي پروژي لپاره د قرار داد د منل شويو موادو رعايت ونکړي نو داسي مؤسسو او شرکتونو ته د فعاليت اجازه نه ورکول کيږي او مخنيوی يي کيږي ، د اسلامي امارت مجاهدين کولای شي چي د دا ډول سرغړوونکو مخنيوی وکړي ، البته که بيا وغواړي چي په اصولي ډول خپل فعاليتونه له سره پيل کړي نو د تضمين تر ورکړي وروسته بايد د کار او فعاليت نوی جواز تر لاسه کړي.

**پوښتنه** : تاسو په هيواد کي دتليفوني شبکو دکنټرول او انسجام مسؤليت هم په غاړه لرئ موږ او رو چي اشغالګر او دهغوی کورني مزدوران دتلفوني شبکو څخه دمجاهدينو او زموږ دهيواد والو په ضد ناوړه استفاده کوي که په دې اړه معلومات را کړئ چي تا سو په دې برخه کي څه ډول اجرا آت کوی؟

**ځواب** : هوکي ، د مؤسسو او شرکتونو د کنټرول او تنظيم کميسيون په ټول هيواد کي د تليفوني شبکو د فعاليتونو څارنه هم کوي او په مختلفو ولايتونو کي د سيمي د حالاتو په نظر کي نيولو سره يي نوموړيو شبکو ته د

فعالیت طرز العمل جوړ کړی دی چې په ځینې سیمو کې ځلرویشت ساعته فعاله وي ، په ځینو کې بیا د ورځې له خوا خلاصي او د شپې بندي وي او په ځینو نورو کې بیا له اړتیا سره سم د څو ساعتونو لپاره د فعالیت اجازه لري البته دا ټول د ولس او مجاهدینو په غوښتنو پورې تعلق لري او د دا ډول طرز العمل په پلي کولو سره د هیواد په مختلفو برخو کې د دښمن د چاپو او ړندو بمباریو مخنیوی شوی او د ملکي تلفاتو شمیره هم ورسره کمه شوې ده ، له بلې خوا دغو کمپنیو ته هم کافي سهولتونه ورکول شوي دي هغه که د امنیت په برخه کې وي او یا هم د افرادو او وسائلو د حمل او نقل په مورد کې ، زه په پوره ډاډ سره ویلای شم چې اوس هیڅوک هم نشي کولای چې د تلیفوني کمپنیو کارکوونکي د خپلو ناروا غوښتنو د تر سره کولو لپاره تهدید کړي او یا یې هم اجناس او وسائط ورڅخه وګرځوي.

نوموړي شبکې مکلفې دي چې له ټاکل شوي تګ لارې سره سم عمل وکړي.

**پوښتنه** : د مؤسساتو د کمیسیون په نمایندګۍ که مؤسساتو ته څه پیغام لري هم را سره شریک کړي ، چې مؤسسات باید خپلو کارونو د دوام لپاره څه ډول فعالیت وکړي او څه ونه کړي؟

**ځواب** : افغانستا ن یو جګړه ځپلی هیواد دی چې له کلونو کلونو را هیسې له ډول ډول کړاوونو سره لاس او ګریوان دی نو په هره برخه کې مرستو ته اړتیا لري ، د دې لپاره چې د بشري چارو د فعالیت مخه تل پرانیستې وي زموږ غوښتنه دا ده چې بشري مرستې ، رغنیز فعالیتونه ، د صحت او تعلیم چارې باید د هیواد ټولو وګړو ته بې له کومه توپیره په یو ډول ورسیږي او د وګړو او سیمو تر مینځ د تبعیض مخنیوی وشي.

په همدې ډول ټولو مرستندویه مؤسسو ، ټولنو او خصوصي شرکتونو ته دا وضاحت کول غواړم چې د مؤسسو او شرکتونو د کنترول او تنظیم کمیسیون د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د دې لپاره ایجاد شوی دی چې د رغونې ، بیا رغونې او بشري مرستو د ویش په وړاندې د شته ستونزو مخه ونیول شي ، د نوموړي کمیسیون له عمومي نماینده پرته هیڅوک د دې حق نه لري چې په یو او بل نامه له مؤسسو او شرکتونو سره تماس ونیسي ، البته د هر ډول ستونزو پر مهال باید دوی مستقیما خپل مشکل د عمومي نماینده په توسط تر کمیسیون پورې ورسوي.

د اسلام او هیواد د دفاع په ګرمو سنګرنو کې پرتو مجاهدینو ته مې پیغام دا دی چې: د دښمن هر ډول د سیسو ته باید متوجه و اوسي ، د کمیسیون له سیمه ایزو استازو سره خپلې مرستې ته دوام ورکړي ، د اړتیا په صورت کې پوره همکاري ور سره وکړي ، وخت په وخت خپل معلومات سره شریک کړي او هیچا ته هم اجازه و نکړي تر څو په یو او بل نامه د بې باورۍ فضاء را مینځ ته کړي او د خپلو شومو اهدافو ترلاسه کولو ته زمینه برابره کړي.

د افغانستان میړنی ولس هم باید په دې پوه شي چې د مؤسسو او شرکتونو د کنترول او تنظیم کمیسیون به ستاسې په مرسته ستاسې د هر ډول ستونزو د حل لپاره په خپل ټول توان سره خپلو هلو ځلو ته دوام ورکړي تر څو له یوې خوا د هیوادوالو د مشکلاتو د حل او هغوی ته د هوسا ژوند لارې چارې برابرې شي او له بلې خوا د مرستو په نامه د دښمن د دسیسو مخه ونیول شي.

الاماره: داچې وخت مو راکړ ډیره زیاته ډیره مننه.

د کمیسیون رئیس: له تاسې څخه هم مننه کوم او له الله تعالی څخه در ته لا زیات توفیق غواړم تر څو د روان جهاد او اسلامي امارت بریالۍ نشراتي مبارزه لا پسې پیاوړې شي.

پای




دسلواغې شپږ ويشتمه دافغان ملت دوياړ يوه لويه اوتاريخي ورځ ده، دافغان ولس جهادي طوفاني څپو دکرملين واکمن اړيستل چې په دغه ورځ له افغانستان څخه خپل ټول عسکروباسي اورسماڅپله ماته ومني .دوارساسره ډغري وهلوته لويو اټومي ځواکونوزړه نه ښه کاوه ، خوافغان ولس په تش لاس دوارسادلوی ځواک مخته خپله سينه سپر کړه چې په برکت يې الله جل جلاله د اتحادجماهيرشوري امپراتوري تراوسنۍ روسيې پروي ور ټوله کړه .

سـرو لښکرو د۱۳۵۸ل ، دمرغومي په شپږمه پرافغانستان وحشيانه يرغل وکړ ، په اصطلاح افغان – شوروی ببرک کارمل يې په روسي ټانک سپورافغانستان ته راوست اودکابل پر پلازيې نصب کړ ، دکمونيزم داخلي مزدورانودشوروي بادارانوپه ملتياپه افغاني ټولنه کې دمارکسيزم دپلي کولو په موخه کټ مټ دليلن اوستالين له انتهايي ظالمانه روشونوڅخه کار واخيست ،دوی هم دخپلو بادارانوغوندي دټولوهغواقشاراو افرادوچې مخالفت يې ورسره درلودد وژلو ، نيولو ،او شکنجه کولوړۍ پيل اوپه خورا شدت سره جاري وساتله ،خلقيان اوپرچميان په شوروي پوځونو، وسلواوپيسو دومره مغرورشوي ووچې په يوه ورځ يې هرات کې دپنځه ويشت زره هيوادوالووينې وبهولې ،همدا رازدهيواد په ګوټ ګوټ کي يې په سلهاووزره ښځې ،ماشومان، اوبوډاګان شهيدان کړل ،په لسهاووزره روحانيون ،علماء اومخوربې ولچک وزولانه کړل چې دزياتروېې تراوسه پوري هم دمرګ اوژوندحال نه دی معلوم .

دشوري ضدجهاد کې يونيم مليون افغانان شهيدان اوهمدومره معيوب شول ،پنځه مليونه مهاجراوټول ولس له راز رازغمونو اوکړاونو سره لاس وګريوان شو.عام المنفعه تاسيسات ګروب شول، صنعتي پارکونه ويجاړشول، کلي ،فصلونه اوباغونه دنيپال اوسکاټ په لمبو کي وسوځيدل ، لويې لاري شوروي ټانګونواوزرې پوښونو کنډوکپر کړې او.....

افغان ولس دخپلووينواوسرونوپه بيه دمارکس ،انګلزاوډاروين له وژنکوپروسونوڅخه امت وژغوره ،له هغه دين څخه يې چې الله تعالی وايي «رضيت لکم الاسلام دينا»ځانونه ځارکړل، اودهيوادخپلواکي يې ترلاسه کړه. دافغان جهادله برکته په ټوله نړۍ په ځانګړې توګه منځنۍ اسيااوقفقاز کي دخپلواکۍ جرس وګرنګيد ، بيده ضميرونه يې ويښ کړل ،محکوم ولسونه يې پاڅون ته بيداراوتيار کړل ،دافغان جهاد څخه په الهام اخيستنه دنړۍ په مختلفو سيموکي پاڅونونه وشول ،دخپلواکۍ غټلوناړې پورته شوې ،دلسيزواوپيړيوراهيسې بايللې مځکې بيرته اصلي مالکانوترلاسه کړې، دخوار ځواکه امت دصحت لپاره ترټولومجربه خوهېره شوې نسخه(جهاد) بيا دودشوه اودنړۍ په ګوټ ګوټ کې دکفر اوظلم پرضد دحی علی الجهادازانګې پورته شوې .

افغانستان چې په نړۍ کې دامپراتوريوپه هديره سره شهرت لري ،شوروي ته هم قبرستان شو،ددوی په اعتراف پنځه لس زره پوځيان يې په افغانستان کې ووژل شول، څه کم پنځوس زره عسکريې معيوب شول . ترلس زره ډيرګاډي ، ټانګونه اوبيلابيل نقليه وسايط يې ويجاړ شول ،څلورسوه اويوځلوېښت چورلکي اوالوتکي يې داور خوراک شوې اوهمدا رازپه لسهاوو زره لويې اووړې وسلې، وسايل اومهمات يې له منځه ولاړل .

شوروي عسکروپه افغانستان کي نهه کاله اوپنځوس ورځې تيرې کړې کرملين په نوبتي شکل شپږلکه پوځيان افغانستان ته راوليږل ،خود خپل ټول وحشت ،زر اوزورکارولوسره ونه توانيدل چې دزمرو په زاله کې دپښې ټينګولوځای ومومي ، بالاخره دافغان ولس سپېڅلي مقاومت مجبور کړل چې د۱۳۶۷ل ،دسلواغې په شپږ ويشتمه له افغانستان څخه پښې سپکې کړي .

ننني نيواکګر په افغانستان کي کټ مټ دپخواني شوروي اشغالګرو له تور برخليک سره مخ دي، ددوی پرضد هم دهيوادپه لويديځ اوختيځ ،شمال اوجنوب کې ولس پاڅون کړی دی ،ننني يرغلګرودوی داعترافاتوله مخي تر دې دمه په افغانستان کې په سلهاوومليارډه ډالرضايع کړي ،او دسلهاووپوځي نقليه وسايطو، وسايلو،چورلکو، الوتکواو..... دله منځه تلوترڅنګ يې دخپلودرې زره اوځلور سوه پوځيانودوژني پخلی هم کړی چې په واقعيت کې يې دسر اومال زيان تر دې څو چنده زيات دی .ناټودوارسا په ګور کې دبقا خوبونه ويني، دخپل رقيب دوژني څخه يې نه يوازي دا چې عبرت وانه خيست ،بلکې دهغه په پيروي يې ځان دامپراتوريوپه هديره کې ښکېل کړچې بې له شکه به له هماغه حالت سره مخ کيږي چې شوروی ورسره مخ شو.ان شاءالله

# په منځنۍ افريقاکې

'' شهيد زوی ''

# دمسلمانانوعامه وژنه دچا په لمسون اودچا لپاره؟

د منځنۍ افريقا په ،،کار ،، نومي هېوادکې چې په کومې بې رحمۍ دمسلمانانو قتل عام وشو او روان دی يقيناً ددې وړ دی چې د اوښکو پرځای پرې دستر ګو نـه وينې تـوی شي، ډيپلازمېنې هنګويې په شمول دهېواد پـه مختلفو برخو کې پـه زرونـو ياسونو ډلې ډلې مسيحيان وسلې چړې، خنجرونـه او کوتکونـه پـه لاس پـه مسلمان مېشتو سيمو يرغلونـه کـوي، دکوچني، ستر، ښځې او سړي دامتياز پرته په کورونو کې دننه او دتېښتې پـه حالت کې پـه لارو کوڅو کې لـه هـرډول وېرې پرته ښه په بې دردۍ مسلمانان وژني، کورونـه او ملکيتونـه يې سوځوي ؛ دوژل شويو مسلمانانو جسدونو ته اور اچوي او پـه اور دمسلمان دوريتو شوو جسدونو نـه لکـه دسپو پـه خپلو خولو غوښې رابېلوي او ښه په مينه يې خوري.

دمنځنۍ افريقا جمهوري د،،کار،، پـه نوم دتـور پوستو داهېواد، نېږدې ۶ لکه او ۲۵ زره کيلومتره مربع مساحت لـري او دنفوسو شمېر يې نېږدې ۵ ميليونو ته رسېږي، چې ددې هېواد دخپلو ادارو په وينا ۵۰ سلنه يکې دمسيحيانو، ۳۵ يکې دځای نـورو مـذهبونو دپيروانـو او ۱۵ سـلنه يکـې دمسـلمانانو ده ؛خودمسلمانانو ځايې اداري مسلمانانو فيصدي د ۲۰نه هم زياته ګڼي .

ددې دشمال ته چاډ او شرقي سوډان پراتـه دي، ختيځ تـه يې جنوبي سوډان، سهيل تـه يې کانګو او لويديځ تـه کيمـرون دی.

دا سيمه چې يکې دمنځنۍ افريقا داجمهوريت هم واقع دی ډېره موده دفرانسې تراشغال لاندې وه، په ۱۹۱۰ کې دا هېواد دفرانسې تراشغال لاندې راغلو چې تر ۱۹۶۰م پورې يې تراشغال لاندې و؛ ځکه خو فرانسوي ژبه لاهم په دولت کې رسميت لري اګر چې درسمي چوکاټ نه بېرون دخبرو ژبه سانګو ده ؛ د۱۹۶۰ کال داګست په ۱۳ مې نېټې دې هېواد ته ازادي ورکړل شوه خو داستعمار ترورځـويې دازادۍ ورځې زياتې لـه بـدبختيو ډکې وې، دا هېواد جمهوري هېواد ګڼـل کېږي خو دازادۍ نـه پـس تـر ۹۰ يمـې لسيزې پـورې پـدې هېـواد کـې جمهـوري دولـت رامنځتـه نـه شـو ؛ ۳۰ کالـه مسلسـل دلتـه دزور واکـانو زورواکـي روانه وه چې ددې زورواکانو په شتون کې ولس دآزادۍ نـه پس هم هيڅ ډول پرمختګ په ستر ګو ونه لېدلو .

دا هېواد هم دګڼو نورو افريقايي هېوادونو په څېر په طبعي زېرمو غني هېواد دی، په باکوما نومې سيمې کې يې ديورانيمـو ډېرې زياتې زېرمې شتون لـري او (( وکاګا )) نـومې سيمه يې چې دخوراکې تېلو نه ډکه ده ترڅنګ يې دلته دسرو زرو، لعلونو او جواهرو، هايډروجنو او نورو کـانونو ډېـرې زېرمې هم شتون لري خو دا چې ددې هېواد دحاکمانو ددې زېرمـو نـه دولس پـه ګټه کار ندې اخستی نو ځکه دا هېواد دنړۍ پـه تر ټولو غريبـو او دافريقا په ۱۰ تر ټولو غريبو هېوادونو کې شمېرل شويدی، دلتـه دهر تن کلني عوايد ايلـه ۳ سوه ډالـرو تـه رسـېږي چـې دا دنړۍ دعوايدو تر ټولو ټيټه کچه ده.

ددولتونو له لورې دولس پر مختګ ته نه پاملر نه چې دولس او دولت ترمنځ دلرې والي سبب او ددولت پر ضد دولس دپاڅون خطر مخ په زياتېدو شو نو ځکه نړيوالو دلته خپل فشارزيات کړ چې له امله يې په ۱۹۹۳ کې دې هېواد کې عامو انتخاباتو ته لار برابره شوه، د۱۹۹۳ پدې عامو انتخاباتو کې ګڼو سياسي ګوندونو ګډون کړی و چې پکې ((اينج فيلکس پتاسي )) بريالی او دهېواد ولسمشر جوړ شو ؛ خو په ۲۰۰۳ کې پرې فوځي مشر ((فرانيکويس بوزيزي)) کودتا وکړه او بيا يې په ۲۰۰۵ کې ځان دهېواد ولسمشر اعلان کړ دا چې دده دولت دولس غوښتنو ته مثبت ځواب نه و ويلی نو بايد ولسمشري يې پرېښې واى خو هغه دقدرت په چوکۍ کلک پاتې شو او کله چې په ۲۰۱۱ کې انتخابات ترسره شول دهمده ګوند پکې بريالى اعلان شو چې ولس يې ډېر غصه کړ ؛دولس دا غصه او ناراضايت په ۲۰۱۳ کې په بغاوت بدل شو فرانيکويس بوزيزي استعفى ورکولو ته اړ او د ۲۰۱۳ په مارچ کې دمسلمانانو ،، سليکا،، نومې ګوند واک ته ورسېد او ددې ګوند يو مشر ،،ميکال جوتوديا،، ددې هېواد ولسمشر شو چې ورسره سم دمسلمانانو پر ضد دمسيحيانو د راپارولو لپاره ټول لويديځ او خصوصاً فرانسې دا تبليغات پيل کړل چې مسلمانان ددې هېواد په واک مسلط کېدل غواړي ؛ بس ددې خبرې درامخې ته کېدلو نه پس ددې هېواد نه دمسلمانانو دجرړو ويستلو په موخه د هماغه مارچ دمياشتې نه مسيحيانو په مسلمانانو وسله وال بريدونه پيل کړل چې ترننه دوام لري، د ۲۰۱۳ ددسمبر په ۵مې نېټې پدې هېواد کې دامن او سولې راوستلو په نوم ۱۶۰۰ فرانسوي فوځيان ددې هېواد پلازمېنې بنګويې ته رابشکته شول، دفرانسوي فوځيانو ترڅنګ دلته داروپائى اتحاد ۱۰۰۰او دافريقايي اتحاد ۴۴۰۰ سوله ساتي فوځيان هم دلته راغلي دي چې دهمدوئ دفشار په نتيجه کې دهېواد مسلمان ولسمشر ،،ميکال جوتوديا،،دتېرې مياشتې يانې د ۲۰۱۴ دجنورۍ په ۱۰ مې نېټې په هېواد کې دامن راتللو او پر مسلمانانو دحملو بندېدلو په شرط استعفى ورکولو او دهېواد نه بېرون تللو ته هغه مهال اړشو چې کله دفرانسوي فوځيانو او افريقايي مر کچيانو په وساطت دهغه نه دمسيحي ملېشو له لورې دواک نه دلرې کېدلو او دهېواد پرېښودلو غوښتنه رامخې ته شوه.

،،ميکال جوتوديا،،داليګزينډر فرډينينډ په مشرۍ کې عبوري اداره جوړه کړه؛ پخپله يې استعفى ورکړه؛ واک يې عبوري ادارې ته پدې شرط وسپارلو چې په راتلونکي کې به ازاد انتخابات ترسره کېږي او سمدستي به د ،،اينټي بلاکا،،په نوم دمسيحي وحشي مليشو له لورې پر مسلمانانو حملې ودرېږي.

خو متأسفانه چې دنوموړي مسلمان ولسمشر داستعفى نه پس چې اصل واک مسيحي ملېشو ته په لاس ورغلو نه يوائې دا چې پر مسلمانانو حملې ونه درېدلې بلکې دبهرنو فوځونو ترڅتر لاندې نه زياتې او خورا منظمې شوې؛ دفرانسې او افريقايي اتحاد فوځيان دمسلمانانو دمال ځان او عزت دساتنې لپاره دهڅو پر ځاى دروان وحشت ننداره کوي او ضمناً مسيحي ملېشې دمسلمانانو پر ضد لازيات ظلم او وحشت ته هڅوي ځکه چې فرانسويان خو هسې هم مسيحيان دي دافريقايي اتحاد دلته راغلي فوځيان هم دروندا، بروندي او ځنې نورو هېوادونو مسيحيان دي چې مسلمانانو ته يوائې دشر رسولو تمه ترې کېداى شي اوبس.



دفرانسې مشهورې ورځپانې ،،لافرانسوا،،په خپل يو

خپور کړي راپور کې اعتراف کړی چې دفرانسوي فوځیانو په شتون کې د محتاطو اندازو له مخې دهېواد په پلازمینې بنګویې کې دوژل شویو تنانو شمېر ۱۰ زرو تـه رسېږي او دپلازمینې نـه بهر دهېواد پـه مختلفو برخـو کې د ۵ زرو نـه زیـات تنـان وژل شـویدي حـال دا چـې دمسـلمان ولسمشـر داسـتعفی ورکولـو او دهېواد پرېښودلو په صورت کې مسیحي ملېشو مرکچیانو تـه پر مسلمانانو دحملو نه کولو اطمینان ورکړی و.

پدې هېواد کې دځـای Islamic Humanitarian Assistance نومي اسلامي تنظیم مشر شیخ احمدالمثل رسنیو تـه ویلي دي چې: دفرانسوي فوځیانو په شتون کې دمسلمانانو عامـه وژنې ډېرې پوښتنې راولاړې کړیـدي ؛ مسـیحي ملېشـو پر مسلمانانو هغـه مهال په خلاص مټ سترې حملې پیل کړې کله چې دفرانسې، افریقـایې اتحـاد او ملګـرو ملتونـو دامـن فـوځ دلتـه راغلـو او دافریقـایې مرکچیـانو پـه منځګړیتـوب مسـلمان ولسمشـر استعفی ورکـړه ؛ نو داسې ښکاري چې دا هر څـه دیو پلان لـه مخې شویدي ،،

آزاد اژانس آل افریقا ډاټ کام پخپل یو راپور کې لیکلي دي چې مسیحي ملېشې مسلمانان دبسونو او نـورو مسافرو وړونکو موټرو نه راکوځوي په تورو او خنجرونو یې وهي لایې ساه نـه وي وتې چې دوئ یې دخوراک لپاره لـه بـدن غوښې پرې کـوي او یاوربانـدې تېل پاشي او ژوندي یې سوځوي بیا یې دبـدن غوښې پرې کوي او دحاضرو وګړو ترمخـه یې خـوري ؛ مسلمانان چې پیاده لـه سیمو وځي دهغوئ هم همدا حال دی، چې پـدې متمدنې نړۍ کې هم دلتـه دآدم خـورۍ بـاب پرانستل شوی او دپرانستل کېدو سره سم عروج ته رسېدلی دی .

عجیبـــــه دا ده چـــــې ددې آدم خـــــورو مشـــــر ،، اوندجامنګلور ،،دمسلمانانو دعامه وژنې او ددوئ دغوښو خوړلو نه یوازې دا چې اعتراف کوي بلکې فخر هم پرې کوي خو څـوک ترې دپوښتنې کولو نشته.

دنړیوالو ادارو لـه لـورې دخپرو شویو راپورونـو لـه مخې دپلازمېنې په شمول دهېواد په یوې برخې کې هم مسلمانان پـه خپلو کورونو کې ندي پاتې، یا خو مسلمانان دوه بهرنو هېوادونـو چاډ او کیمرون ته کډه شوي او یا هم پخپل هېواد کې دیـو نـه بـل ځای ته تللي دي چې دبی ځایه شویو ټولوشمېر یـو میلیـون تـه رسـېږي ؛ یـوازې دهېـواد هـوایې ډګـر تـه دیـو لکـو نـه زیـات مسلمانان راجمع شویدي .

دهیومن رایټس پـه شـمول دبشـر دحقوقـو نړیوالې اداري وایې چې دمسـلمانانو شـتمنۍ چې پـه لـوړ مقدار لـوټ کېـږي، کورونه یې ورانېږي، هجرتونو ته اړ کېږي، او قتل عام یې روان دی کـه دا هـر څـه همداسې روان وي نـو ډېـر ژر بـه دا هېـواد دمسلمانانو نـه خالي شي او دلتـه بـه بیادمسلمان پـه نـوم ګکي څوک نه پېژني.

دملګـرو ملتونـو سرمنشي بـان کې مـون ویلي دي چې دا هېـواد دمسـلمانانو او مسـیحیانو پـه سـیمو دتقسـیم دخـورا ستر خطر سره مخامخ دی .

دلویـدیځ دسیاسـي دریـځ پر ضـد چې پـدې ورځـو کې دروسې له لورې یو کوچنی اقدام شویدی نو لویدیځ ټوله نړۍ پـه سر راخستې ده او پـه ملګرو ملتونو کې پدې اړه یو بل پسې ژر ژر درې بېړنـۍ غونـډې وشـوې او روسـې بانـدې داقتصـادي بندیزونو خبرې رامخې ته شوې خـو دلتـه چې دمنځنـۍ افریقا پـه ،، کـار ،، هېواد کې یـو سـتر بشـري نـاورین دی نـو وربانـدې دنړۍ دبشر دحقوقوټیکداران نړیوال ستر طاقتونه غوږ هـم نـه ګروي ځکه چې دلته دوحشت ښکار مسلمانان دي او مهمه دا ده چې وحشت دمسیحي وحشیانو له لورې دی؛ کـه چرتـه دنـړۍ پـه کـوم ګـوټ کـې دمسـلمانانو لـه لـورې ۱۵ زره نـه بلکـې ۱۵ عیسویان یا یهودیان مړه شوي وای بیا بـه نړۍ لېدلی وای چې نړیوال طاقتونه څومره ژر په حرکت کې راتلل ؟!

نړیوالـو رسنیو هـم خپلـه اسلام دښمني ښکاره کـړه، دا دمسلمانانو او مسیحیانو تـرمنځ پـه نښتو او فساداتو تعبیـروي حال دا چې دا دیو اړاخیزې حملې او دیو منظم پلان له مخې ددې هېواد نه دمسلمانانو دنابودۍ لپاره دوحشت یـو خـورا خطرناکـه لړۍ ده.






( ډاکټرعطامحمد رحیمي )

کله چې داربکیزم کرغېړنه پروژه د ورک اسدالله خالد او دهغه د باند چیانو پر لمسون لومړی ځل د غزني په اندړو کې رابرسېره شوه، په هماغه پیل کې یې چې د دوی اخلاق همدې بنسټګرو په خپلو سترګو ولیدل، مایوسه ښکاربدل او ښکاره یې اعتراف کاوه، چې ممکن همدا اربکیان به داسې بنه خپله کړي، لکه پخوانیو زرداديانو چې هیڅ ډول ارزښت به پر رسمیت نه پېژني.

همداسې وشول، د هېواد په ګوټ ګوټ کې لومړی ځل د ولسي پاڅون او دقومي مخورو ترسرلیک لاندې فعالیت شروع کوي چې وروسته یې خپله څېره ورو ورو بربنډه کړې. په دې وروستیو کې له غلامو رسنیو نه داسې راپورونه خپاره شول چې دلوګر په چلتن کې هم ولسي پاڅون شوی، ولسي پاڅون پر دې مانا چې دا خلک له هیچا سره تړاو نه لري یوازې غواړي په خپلو متو له خپلو سیمو نه طالبان ورک کړي.

لومړی خو دا خبره عقل نه مني چې د یو چا دې دښمن شریک وي، خو دوی دې سره دوستان نه وي، ځکه امریکا، ګوډاګی رژیم او همدا اربکیان ټول همدا یو غرض لري چې طالبان ورک کړي، نو بیا اربکیانو پر کوم منطق ځانونه له دولته لري او دولس له منځه بولي؟؟؟ که چېرته دوی رښتیا هم د ولس له منځه ولسي پاڅون کړی وي نو داسې یو ولس چې له لسګونه ځل د خپل بادار له خوا ډې ډې آر او ډایاګ شوی وي، هغوی باید په تبرګیو او لرونو پاڅون وکړي، اما تاسې به لیدلي یا هم اورېدلي وي چې د اندړول له شریرو اربکیانو سره داسې سلاح ګانې په پیل کې موجودې وي چې د دې ګوډاګي رژیم له اردو سره هم نه وي. نو پر کوم دلیل دغه خلک د ولس له منځه دي؟؟؟

د لوګر پاڅون خپلو پوره دوه ورځې خپله اصلي اربکینه څېره معلومه کړه او پر ګوډاګي رژیم یې غږ وکړ چې له موږ سره باید مرسته وشي، دا دی د خلکو پر فکرونو ملنډې!!!

د دې شریرې ډلګۍ په منځ کې داسې خلک ننوتل چې په هیڅ ډول ارزښت بند نه دی او هیڅ ډول ارزښت په رسمیت نه پېژني، لواطت، زنا، لوڅ فلمونه، چرس، بچه بازي او فحشا یې ورځني عادتونه دي. ځکه خو دې خلکو بې له نظامي، اخلاقي، ټولنیزې زده کړې ټوپک غاړې ته واچاوه او د سرک پر سر د سرک د ساتلو پر نامه د خلکو د لوټولو لپاره ودرید.

د غزني د مقر په بازار کې اربکیانو پرهر دوکاندار د میاشتې زر افغانۍ خپل حق ګڼلی او که یې ورنه کړي، نو داسې حال به یې وي، لکه د زابل د اسحاقزي چې پرهمدې زرو افغانیو یې شهید کړ.

د اندړو اربکیان بیا د چهارد ټوال په سیمه کې په رڼا ورځ د پکتیکا غزني په لویه لاره د موټرو د تلاشۍ پر پلمه د خلکو جېبونه لوټي.

دوه ورځې وړاندې یې له پکتیکا څخه را روان ټونیس ډوله موټر پاک تلاشي کړی و، او د موټروان پر قول چې پنځه ویشت زره کلدارې یې ټولې کړې.

موټروان وویل چې خو ځلې د دې لارې مسوول قوماندان چې له غزني ښار سره په بیرګټ کلا کې اوسي ورغلي یو، شکایت مو ورته کړی هغوی لا راته ویلي دي، چې دا خو زموږ مربوط نه دي، دا خلک خو تاسې جوړ کړي دي.

د پکتیکا په مرکز ښرنه کې د اربکیانو یوې ځای یوه پوسته چې د زړې ښرنې پرنامه په یوه کلا کې اوسي، د یادې سیمې د اوسېدونکو پر قول تل له کلي نه ښایسته هلکان پر دې خاطر چې ګواکي په دوی پسې یې ښکنځل کړي، پوستې ته بیایي او شپه پرې تېروي، که یې دا هلک شکایت وکړي، د ویډیو پر خپرولو یې ګواښي. د دوی په خبره تر ولایته څو ځلې تللي خو په پکتیکا کې د اربکیانو عمومي قوماندان عزیزالله یې خبره په خوله کې ورو چه کړې ده. د دې ولایت د ځینو ولسوالیو اوسېدونکي بیا له اربکیانو پر نورو فحشاو سربېره پر دې په تنګ دي، چې له کیلومترو لرې راغلي شینواري چې کورني اربکیان ورسره دي د دوی په کورو کې ډېره دي او له دوی نه بوتي، لرګي او د خوراک توکي غواړي، مګر پر دې سربېره په پکتیکا ځینې ځیره خواره خبریالان لا دا راپورونه خپروي چې د پکتیکا خلک د اربکیانو ډېرښت غواړي!!!

**همداسې وشول، د هېواد په ګوټ ګوټ کې لومړی ځل د ولسي پاڅون او د قومي مخورو تر سر لیک لاندې فعالیت شروع کوي چې وروسته یې خپله څېره ورو ورو بربنډېږي. په دې وروستیو کې له غلامو رسنیو نه داسې راپورونه خپاره شول چې دلوګر په چلتن کې هم ولسي پاڅون شوی، ولسي پاڅون پر دې مانا چې دا خلک له هیڅا سره تړاو نه لري یواځې غواړي په خپلو مټو له خپلو سیمو نه طالبان ورک کړي.**

په کندوز کې د دې شریرې پروسې په پنځلس کسیزه ډلګۍ سره د عبدالخالق پر مشرۍ پر پنځلس کلنې نجلۍ د کورنیو د نورو غړیو تر مخ جنسي تېری کړی دی، چې رسنیو پرې په څو څو ځلو ورته پېښو خوله پټه کړې ده.

سره له دې چې د دې شریرو پاټکیانو اړوند د هېواد په ګوټ ګوټ، لکه زابل، کندوز، پروان، غزني، پکتیکا، فراه او... کې لاریونونه شوي، خو د کابل دولت پورته خلک د دوی اربکیانو د استعمال نه په ګټې په مزو چړچو اخته دي.

هغه بې موره، بې پلاره، ښایسته، خوارلس کلن، ښوی مخی اربکی پر دې نه دی خبر چې دی له کوم نظام نه دفاع کوي؟؟؟

مشران اربکیان یې بیا هیڅ ډول نظام په رسمیت نه پېژني او د هرې پوستې اربکی د خپل پاټک پاچا دی!

# د عیسیٰ

# له لوري د اخري پيغمبر زيرى

نحمده ونصلی علی رسوله الكريم امابعد:

په اوسنۍ زمانه کې هغه خلګ چې د عیسائیت دعوه کوي، خو بیا هم د اسلام پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم

ایمان نه راوړي.

دوی باید لږ ترلږه دومره فکروکړي چې آیا دوی ته عیسائیت د دې کار اجازه ورکوي چې د اسلام له پیغمبر صلی الله صلی الله علیه وسلم څخه انکار وکړي؟

راشئ ! وګورو چې حضرت عیسی علیه السلام او انجیل په دې هکله څه وایي؟

حضرت عیسی علیه السلام خپلو تابعدارو ته زموږ د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د راتګ خبرورکړی وو الله پاک فرمايي: قال الله تعالی: ( وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ مُصَدِّقاً لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ وَمُبَشِّراً بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ فَلَمَّا جَاءَهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوا هَذَا سِحْرٌ مُبِينٌ ) الصف /٦. {او یاد کړه د مریم د زوی عیسی (علیه السلام) هغه خبره چې هغه ویلي وو چې اې بني اسرائیلو: زه تاسو ته د الله لېږل شوی استازی یم، تصدیق کوونکی یم د هغه تورات چې له ما مخکې راغلی موجود دی، او زیری ورکوونکی یم دیوه پیغمبر چې له ما وروسته به راشي چې د هغه نوم احمد دی، خو کله چې هغه دوی ته د څرګندو نښانو (معجزو ) سره راغی، نو دوی وویل: دا خو ښکاره کوډي دي}

په بل ځای کې الله جل جلاله فرمایلي دي} : الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوباً عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالإِنجِيلِ يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنْ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمْ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمْ الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالأَغْلالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِي أُنزِلَ مَعَهُ أُوْلَئِكَ هُمْ الْمُفْلِحُونَ(سورة الاعراف الاية ١٥٧ )

ژباړه: دا (تقوا لرونکي، زکات ورکونکي او د الله په آیاتونو ایمان لرونکي ) هغه کسان دي چې تابعداري د داسې رسول کوي چې نبي او امي دئ. هغه رسول چې دوی يې (نوم او یاد ) په تورات او انجیل کې له دوی سره لیکلی پیدا کوي ،(هغه رسول چې ) په ښېګڼې سره دوی امر کوي او له بدۍ څخه يې منع کوي ، دوی ته پاکیزه شیان حلالوي او مردار شیان ورته حراموي،

او درانه پېټي (سخت احکامات ) ترې ایسته کوي او هغه سخت طوقونه (سزاګاني ) چې پر دوی باندې وو ،(ایسته کوي )نو هغو کسانو چې ایمان پرې راوړ ، ملاتړ او مرسته يې وکړه او په هغه رڼایي پسې روان شول چې له ده سره رانازله شوې ده، همدوی بریالي کېدونکي دي ! ! )

په حدیث شریف کې راغلي دي: عن خالد بن معدان عن أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم أنهم قالوا: يا رسول الله أخبرنا عن نفسك. قال: "دعوة أبي إبراهيم وبشرى عيسى، ورأت أمي حين حملت بي كأنه خرج منها نور أضاءت له قصور بصرى من أرض الشام ." (اخرجه الطبري، والحاكم والبيهقي وقال ابن كثير ص٢٠٦ ج٦ وهذا اسناد جيد )

خالد بن معدان د رسول الله صلی الله علیه وسلم له ملګرو څخه روایت کوي چې دوی وویل: اې د الله رسوله (صلی الله علیه وسلم ) موږ ته د ځان په هکله خبر راکړه !

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه د خپل پلار ابراهیم (علیه السلام) دُعا یم، د حضرت عیسی علیه

السلام زېری یم او کله چي زما مور زما له امله امیدواره شوه، خوب یې ولید لکه له دې څخه چي یوه داسي رڼا ووتله چي له امله یې د شام د زملکي د بصری ماڼۍ روښانه شوې!!

## په اوسني انجیل کي د اسلام د پیغمبر په هکله زېری

دا خبره خو ټولو ته معلومه ده او خپله یهود او نصاری هم د دې خبري اقرار کوي چي په تورات او انجیل کي تحریف او بدلون راغلی دی.

او حقیقت دا دی چي په دغو دواړو کتابونو کي دومره زیات تحریف راغلی دی چي د اصلي کلام پېژندل ناشوني او ګران کار دی.

په دغه محرف او بدل شوي انجیل کي اوس هم داسي خبري شته چي له هغو څخه دا جوتېږي چي حضرت عیسی علیه السلام د آخري پیغمبر صلی الله علیه وسلم د راتګ زېری ورکړی وو.

چي دا په اصل کي د نبي علیه السلام یوه معجزه ده چي د تورات او انجیل د بدلون سره سره بیا هم څه ناڅه خبري تر اوسه په انجیل کي پاته شوې دي چي د نبي علیه السلام تائید او د راتګ زېری ترې معلومېږي په اوسني انجیل کي داسي راغلي دي: زه به تاسو سره زیاتي خبري ونه کړم ځکه چه د دې دُنیا سردار راتلونکی دی او ما په ماکي د هغه هیڅ نشته (انجیل یوحنا: ایت ۳۰ باب ۱۴)

په دې کي حضرت عیسی علیه السلام د دُنیا د سردار د راتلو خبر ورکړی او دا یې هم ویلي چي کومه مرتبه او فضیلت هغه ته الله پاک ورکړی دی، ما ته نه دی راکول شوی.

د دې وجه په بل ځای کي داسي لیکي: ځکه چي زموږ علم ناقص دی او زموږ پیغمبري ناتمامه ده، لیکن کله چي کامل راشي نو ناقص به ځي (کورنتیانو ته د پولس لومړی خط: باب: ۱۳ آیت: ۹، ۱۰)

په بل ځای کي داسي وایي: کله چي هغه د حق روح راشي، نو تاسو ته به د رښتینولۍ لار د رښيي ځکه چي هغه له خپل لوري نه وایي، لیکن څه چي اوري هغه به وایي او تاسو ته به د راتلونکي خبر درکوي (انجیل یوحنا باب: ۱۶ آیت: ۱۳)

د دغو صفاتو لرونکی شخص له نبي علیه السلام پرته بل څوک نه دی او دا ټول صفات په هغه کي موجود وو:

د دُنیا سردار، د کامل شریعت خاوند، خلګو ته د رښتینولۍ دلاري ښوودونکی، د راتلونکي په هکله ښه شمېره وړاندویني کوونکی او له خپل لوري پرته له هغه چي ورته یې وحي شوې وي د نور څه نه ویونکی دا هغه صفات دي چي د اسلام په پیغمبر صلی الله علیه وسلم کي په بشپړه توګه موجود وو.

په بل ځای کي له نبي علیه السلام څخه انجیل په مرستندوی سره تعبیر کوي او د ده د شریعت د تر قیامته د پاته کېدلو خبر ورکوي لیکي: او زه له پلار څخه غوښتنه کوم، نو هغه به تاسو ته بل مرستندوی درکړي چي ترابده پوري ستاسو سره و اوسي (انجیل یوحنا باب: ۱۴ آیت: ۱۶)

په دې کي د راتلونکي پیغمبر د راتلو زېری او د ده د شریعت تر قیامته د پاته کېدلو خبر ورکول شوی دی.

همدا راز نور ځایونه هم ډېر شته په ځانګړي توګه په انجیل برناباس کي خو ډېر زیات او ډېر په صراحت سره د نبي علیه السلام بیان راغلی دی. خو موږ اختصار ته په پام په دغو حوالو اکتفاء کوو.

نو د دې سره بیا هم چي عیسایان پر نبي علیه السلام له ایمان راوړلو ډډه کوي، دا له انجیل څخه د بشپړ مخ اړولو پرته بل څه نه دي.

علامه ابن قیم جوزي رحمه الله لیکلي دي: لو لم یظهر محمد بن عبد الله صلی الله علیه وسلم لبطلت بنوة سائر الأنبیاء، فظهور نبوته تصدیق لنبواتهم، وشهادة لها بالصدق، فإرساله من آیات الأنبیاء قبله، وقد أشار سبحانه إلى هذا المعنى بعینه، في قوله: (*جاء بالحق وصدق المرسلین*) فإن

المرسلین بشروا به، وأخبروا بمجیئه؛ فمجیئه هو نفس صدق خبرهم.(هدایة الحباری في اجوبة الیهود والنصاری ص ۱۲۰)

(که رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وی ښکاره شوی، نو د ټولو پیغمبرانو (علیهم السلام) پیغمبري به باطله شوې وی، نو دده د پیغمبری راښکاره کېدل د هغوی د نبوتو لپاره تصدیق دی او د هغوی د پیغمبری لپاره په رښتیا والي سره شاهدي ده، نو دده را لېږل تر ده د مخکینیو پیغمبرانو له معجزو څخه ده.

او الله پاک هم دې خبري ته په خپله دې وینا کي اشاره کړې چي: هغه (نبي علیه السلام) له حق سره راغلی او د ټولو (پخوانیو) پیغمبرانو تصدیق یې کړی دی! ځکه پیغمبرانو دده په هکله زیری ورکړی وو او دده د راتګ خبریې ورکړی وو، نو دده راتګ په خپله د دوی د خبر صدق او رښتیا کېدل دي!!

نو پر عیسایانو باندي د حضرت عیسی علیه السلام او د انجیل د تعلیماتو په رڼا کي هم دا لازمه ده چي د حق په روح او د دُنیا په سردار جناب محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ایمان راوړي.

که کوم د عیسائیت مدعي ایمان نه راوړي نو هغه عیسایي نه بلکي له حضرت مسیح علیه السلام او انجیل څخه هم منکر دی او د حضرت عیسی علیه السلام رښتوني منونکي او ورسره مینه لرونکي یوازي او یوازي مسلمانان دي چي پر ټولو پیغمبرانو علیهم الصلاة والسلام ایمان لري او د ټولو احترام کوي.

وصلی الله علی نبینا محمد وعلی آله واصحابه اجمعین

مولوي عصمت الله عزام

## د عمر په کوم کال کې نه هېرېدونکې خاطرې ثبتېږي؟

په امریکا کې یوه وروستی څېړنه وایي، چې د انسان د ژوند تر ټولو غوره او نه هېرېدونکې خاطرې په ۲۵ کلنی کې ثبتېږي، دغه خاطرې له انسان سره د عمر تر پایه وي او له ځینو استثنایي حالاتو پرته کله هم د چا له یاده نه وځي.
د څېړنې د معلوماتو په اساس، ډېری کسان چې د ۳۰ تر ۴۰ کلنی عمر ته رسېږي، نو د پرېښانی او غم احساس کوي؛ اما په تقاعد شویو کسانو ترسره شوې دا څېړنه وایي، چې د انسان د ژوند تر ټولو غوره او خوږې خاطرې د هغوی د ځوانی د مهال وي.
دا څېړنه پخپل ډول کې لومړنی هغه ده او له څېړل شویو کسانو پکې د ۳۰ دقیقو لپاره د هغوی د تېر ژوند په اړه پوښتنې شوې دي، دې کسانو د ځوابونو د دقت لپاره یوه اونی وخت درلود او تر یوې اونی وروسته یې ویلي چې ۲۵ کلنی یې د ژوند له ښو خاطراتو ډک وخت دی.
څېړنه ښیي چې؛ د انسان د عمر له خاطراتو ډک او مالامال کلونه له ۱۷ تر ۲۴ کلونو دي، خو ۲۵ کلنی بیا د مثبتو، ښو او نه هېرېدونکو خاطراتو ټولګه ده چې انسان یې تر مرګه یاد ساتي.
په اوسط ډول ځوانان پدې کال کې له پوهنتونه فارغېږي، دنده پیدا کوي، واده کوي، د بچیو پلار کېږي او د ژوند د نورو مهمو او مثبتو پېښو ډېری یې په همدې کال کې رامنځته کېږي.
د همپشایر پوهنتون استاده او ددې څېړنې یوې غړې کریسټینا اشتاینر ویلي چې؛ د انسان د عمر ۲۵ کلنی په ځان د هغوی د بسیا کېدو له پلوه غوره کال دی او د پورته ځانګړنو په ترلاسه کولو دوی هېڅکله هم د دغه کال لاسته راوړنې نشي هېرولی.

# آمریکای دیروز ، امروز و فردا یکی است!

منابع خارجی

امروز دنیا، دنیای ظلم و دروغ و فریب است. پرچم دفاع از حقوق بشر را کسانی به دوش گرفته‌اند که بزرگترین دشمنان حقوق بشرند! در راس آنها هم دولت امریکا است. ببینید در داخل کشورشان، با سیاهان چه می‌کنند! هنوز مساله‌ی تبعیض نژادی در آن کشوری که مدّعی آزادی و حقوق بشر است، حل نشده است. هنوز انسانی به جرم پوست سیاه، تامین ندارد که در آن جامعه زندگی کند! يك وقت اگر لازم باشد، به جرم سیاه پوست بودن، پولیسی او را تا حدّ کشتن كتك می‌زند !

اینها ادّعای حقوق بشر می‌کنند! اینها چشم خود را بر جنایات وحشت‌آور حکومت غاصب صهیونیست می‌بندند. این بمبارانها، این آدمرباییها، این کشتارها؛ اینها همه جنایت است. همه‌ی اینها حرکات ضدّ حقوق بشر است. طرفداران حقوق بشر، هیچ احساس نمی‌کنند که ضدّ حقوق بشر در آنجا انجام می‌گیرد .

امروز پرچم حقوق بشر را چنین کسانی بردوش گرفته‌اند! امروز در دنیایی که بر اساس فرهنگ زور و نامردمی بنا شده است، همه ملتها باید روح دفاع از مصالحشان را در میان خود تقویت کنند. می‌بینید که چطور سیاستهای عالم بر اساس زور، ظلم و نادیده گرفتن حقوق انسانها می‌چرخد و اداره می‌شود .

دوازده سال است که آمریکاییها همه نوع جنایت در کشور ما مرتکب می شوند. مردم افغانستان با بدترین شکنجه‌ها در زندانهای تحت اختیار خارجی ها شکنجه می شوند. همه منابع و معادن افغانستان را غارت می کنند. بعضا به حریم نوامیس افغانستان تجاوز می کنند و با همکاری با مافیای مواد مخدر جوانان کشور ما را به بدبختی می کشانند. وضعیت زنان و کودکان افغانستان نیز بعد از سرازیر شدن میلیاردها دالر به کشور ما مشخص است. توهین به مقدسات اسلامی و منحرف کردن اعتقادات مذهبی مردم توسط نیروهای وابسته به آمریکا نیز بر کسی پوشیده نیست.

آیا اینها معنی حقوق بشر را می فهمند؟! آیا این آدمها و این سیاستمدارها می‌توانند ادعا کنند که اصلاً حقوق بشر را فهمیده‌اند؛ چه رسد به طرفداری از حقوق بشر؟! اینهایی که وقتی می‌خواهند راجع به دولتهای مخالف خودشان حرف بزنند، مثل نقل و نبات همین‌طور کلمه حقوق بشر از دست و رویشان می‌ریزد! هر کس را بخواهند متهم کنند، به نفی حقوق بشر یا به عدم مراعات حقوق بشر متهم می‌کنند؛ مثل این‌که آنها بانی حقوق بشرند!شماچه می‌فهمیدكه حقوق بشر چیست؟! شما که علیه ملتهای افغانستان، عراق ،سوریه، فلسطین چنین خیانتهایی را روا می‌دارید و با صهیونیستهای نژادپرست همدست و همراه و حمایت کننده‌ی آنها هستید، چه می‌فهمید که حقوق بشر چیست؟ !

آن وقت، امریکاییها ادّعای طرفداری از حقوق بشر می کنند؛ در باره حقوق بشر سخنرانی می کنند؛ حرف می زنند؛ سیاستگذاری می کنند و موضعشان را نسبت به رژیمها معین می کنند. فلان رژیم در لیست سیاه آنها است، چون به قول آنها «مراعات حقوق بشر را نمی کند!» فلان رژیم امروز از لیست سیاه خارج شد! فلان رژیم امروز وارد لیست سیاه شد! اینها، دنیا را بازی می دهند. افکار عمومی عالم را با این ملعبه به تمسخر می گیرند و بشریت را استهزا می کنند .

می گویند «ما طرفدار حقوق بشریم»! ما می گوییم: اصلاً شما حقوق بشر را قبول ندارید. شما معتقد به حقوق بشر نیستید. شما معتقد به حقوق کمپانیها و سرمایه داران بزرگ آمریکایی هستید. شما معتقد به منافع نامشروع رژیم امریکا در سراسر دنیا هستید. شما به حقوق بشر کار ندارید! آن دیروزتان، این امروزتان! این قضایای داخل امریکا و مساله سیاهان! شما شهروندان خودتان را فقط به این جرم که پوستشان سیاه است، زیر پاهایتان لگدمال می کنید، آن وقت دم از حقوق بشر می زنید؟! شما سالهای متمادی در مناطق گوناگون عالم، انسانهای مظلوم را ذبح کردید. در ویتنام چه کردید؟ چندصد هزار از نیروهای آمریکایی برای دفاع از یکی از فاسدترین رژیمها به ویتنام رفتند! نه فقط مسلّحین مقابل خودشان، بلکه زن و بچه ها را کشتند. چقدر کشاورزان مزارع را از بین بردند و کشتند و گروههایی را در زیر خروارها خاك مدفون کردند! اینها حقوق بشر است؟ !

آن از دیروز آمریکا با آن همه جنایتش، این از امروز آمریکا با این همه خیانتش و خدا می داند ادامه حضور آمریکا در فردا چه بر سر مردم مظلوم افغانستان خواهد آورد. ولی آنچه مسلم است اینکه آزموده را آزمودن خطا است. تاکنون در تاریخ از آمریکا چیزی جز غارت و خونریزی و چپاول و مظلوم کشی و ظالم پروری چیزی ثبت نشده است که ما بخواهیم چشم امید به بهبود آن داشته باشیم

# ګناه وړه مه ګڼئ

## د ګناه په اړه (حدیث)

عن أنسٍ (رضي الله عنه) ، قَالَ: إِنَّكُم لَتعمَلُونَ أعمَالاً هي أدَقُّ في أعيُنِكُم مِنَ الشَّعرِ، كُنَّا نَعُدُّهَا عَلَى عَهدِ رَسُولِ الله (صلى الله عليه وسلم) مِنَ المُوبِقات.

**د حدیث تخریج**: داحدیث امام بخاري رحمه الله په خپل صحیح، کتاب الرقاق، باب ما یتقی من محقرات الذنوب کې نقل کړی دی، د حدیث نمره ده: ۶۴۹۲

### د صحابي لنډه پیژندنه:

أنس بن مالک بن النضر د مدینې منورې د انصارو د خزرج قبیلې څخه وو، مور یې ام سلیم بنت ملحان نومیده، مدینې منورې ته د نبي کریم ﷺ د هجرت په وخت کې د ده عمر لس کاله وو، مور یې یې هغه د اسلام د ستر پیغمبر د خدمت لپاره وګماره، او لس کاله یې د هغه ﷺ خدمت وکړ، تر څو چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ژوندی وو، نوموړي یې خدمت کولو، انس (رضي الله عنه) تقریبا د سلو کالو په عمر کی څه دپاسه په نویم هجري کال کې په بصره کې له دنیا څخه سترګې پټې کړې.

### د مفرداتو معنی:

أدَقُّ: باریک، لږ، کوچنی. أعیُنِکُم: د عین جمع ده، عین سترګې ته وایي، یعنې ستاسو په سترګو کې. الشَّعرِ: ویخته، نَعُدُّهَا: شمیره به مونږ هغه. عَهدِ: زمانه، وخت، المُوبِقات: د موبقة جمع ده، تباه کوونکې او هلاک کوونکی شی.

أنس (رضي الله عنه) وایي چې تاسو ځینې داسې کارونه کوئ چې هغه ستاسو په سترګو کې د ویخته څخه هم باریک او کوچني وي، خو مونږ به دغه کارونه د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په وخت کې د هلاک کوونکو شیانو څخه شمیرل.

**تشریح**: اسلام په هر اړخیز ډول د انسان د نفس تزکیه غواړي، او د دغه تزکیې لپاره ضروري ده چې انسان د هر ډول ګناه څخه ځان وساتي، ګناه لویه وي او که وړه خو هرو مرو په نفس باندې اغیزه کوي، د تزکیې په مخ کې خنډ ګرځي او د انسان اړیکه د الله تعالی سره ضعیفه کوي، د انسان د زړه نورانیت تیتوي، او هغه بصیرت او رڼا چې د تقوی په واسطه په زړه کې پیدا کیږي هغه په تیارو بدلوي.

هم دغه لامل دی چې اسلام هر قسم ګناه ناوړه بولي، او خپل پیروان د هغې څخه منع کوي، او نه خوښوي چې انسان د یوې وړې ګناه له امله هم د خپل رب نافرماني وکړي، سره لدې چې اسلام ګناهونه په لویو او وړو قسمونو ویشلي دې، ځینې ګناهونه به د سزا او پایلې له امله ډیر ناوړه وي او ځینې به لږ، خو هیڅ کله یې هم خپل پیروان د وړو ګناهونو په ترسره کولو نه دي ډاډه کړي، عمل خو له څه چې د وینا په اړه یې هم لارښوونه کړې ده چې داسې څه د خولې څخه مه باسئ چې ستاسو د هلاکت او تباهۍ لامل کیږي.

ابو هریرة (رضي الله عنه) د اسلام د ستر پیغمبر وینا نقل کوي چې: «په تاسو کې بهیو څوک د الله د خوښۍ یوه داسې خبره وکړي چې هیڅ پرواه به یې ونه لري، خو الله به یې د هغې له امله درجې پورته کړي، او یو څوک به په هم دغه بې پروایۍ سره د الله د خفګان خبره وکړي چې د هغې له امله به یې الله جهنم ته ګوزار کړي.»

ډیر خلک په ډیره بې پروایۍ سره د الله په هکله، یا د هغه د پیغمبرانو، کتابونو او دین په هکله د خپلې ژبې څخه داسې خبرې وباسې چې هغه د الله په وړاندې ډیره ناوړه شمیرل کیږي، او د هغه د خفګان سبب ګرځي، چې د هغې له امله دغه انسان د تباهۍ جوګه ګرځي، او که انسان د الله، د هغه د پیغمبر او دین د دفاع لپاره په ښکاره ډیره وړه خبره کوي، خو په حقیقت کې به هغه ډیره لویه او ثواب یې ډیر ستر وي.

په یو حدیث کې معاذ بن جبل (رضي الله عنه) وایي چې ما رسول الله ﷺ ته وویل: ما ته په یو داسې خبره حکم وکړه چې ما جنت ته بوځي، هغه مبارک راته وویل: په الله ایمان راوړه او د خبر خبره کوه ستا لپاره به ولیکل شي، او د شر خبره مه کوه، ګنې ستا په خلاف به ولیکل شي، ما ورته وویل: آیا مونږ په خپلو خبرو هم نیول کیږو؟ هغه راته وویل: خلک د خپلو ژبو له امله د جهنم په اور کې پر مخ غوزول کیږي.»

چې د ژبې د یو وړې خبرې له امله انسان د هلاکت سره مخ کیږي، نو د بدن د نورو غړو د وړو ګناهونو له امله به د تباهۍ سره نه مخ کیږي؟

هم دغه لامل دی چې کله انس (رضي الله عنه) خلک ولیدل چې وړې ګناه ته ګناه نه وایي او ډیر په زړورتیا سره هغه تر سره کوي، یا د ګناهونو سره دومره عادت شوي دي چې لویه ګناه هم ورته په سترګو کې وړه ښکاري، نو هغوی ته یې د نصیحت په ډول وویل: چې دغه ګناهونه خو به مونږ د نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) په وخت کې ډیر لوی ګڼل، او تاسو ته اوس ډیره واړه ښکاري، او داسې یې کوئ لکه دا چې ګناه نه وي، یا د دې به هیڅ سزا نه وي، پام کوئ ګناه وړه مه ګڼئ، ځکه که ګناه هر څومره وړه شي خو بیا هم په پایله کې د انسان د تباهۍ لامل کیږي.

نو ځکه ټولو اسلام منونکو او په ځانګړي ډول د حق دلارې دعوتګرانو ته لازم دي چې د هر قسم ګناه څخه د خپل ځان د ساتلو کوشش وکړي، او په یوه پلمه او بله پلمه ځان ته ګناهونه روانه کړي، که یوه ګناه د عامو خلکو لپاره وړه هم وي خو د دعوتګرانو او د حق د لارې د پیروانو لپاره هغه لویه شمارل کیږي، او ډیر ځل د دعوتګر وړه ګناه د هغه په لار کې خنډ جوړوي، او د نورو خلکو لپاره د لویو ګناهونو د کولو بهانه پیدا کوي.

الله (جل جلاله) دې مونږ د هر قسم ګناهونو څخه وساتي. آمین

# اعلام شکست آشکار آمریکا در جنگ افغانستان

حبیب الله نیو سوزی

اوباما به اعلام اختتام جنگ، بر شکست آمریکا در افغانستان اعتراف کرد. رییس جمهور آمریکا بارک اوباما در پنجمین سخنرانی خویش به ملت آمریکا، صراحتا اظهار داشت که آمریکا امسال ۲۰۱۴ م جنگ افغانستان را خاتمه می بخشد و نیروهای خویش را از آن کشور به آمریکا بر می گرداند.

اوباما استثنایی در اظهارات خود نیز داشت که اگر اداره کابل با آمریکا پیمان امنیتی را عقد نماید درآن صورت تعدادی کمی از نیروهای آمریکا و ناتو در افغانستان باقی خواهد ماندند، تا به اصطلاح اوباما، به هراس افگنان موقع بازگشت به افغانستان و تهدید به آمریکا را ندهد. سخنان اوباما از زاویه های مختلف قابل بررسی و دقت است ولی اینجا سعی خواهیم نمود که این سخنان را روی اعلام اختتام جنگ در افغانستان و تاکید بر باقی ماندن شماری از اشغالگران آمریکایی تحت برسی و تحلیل قرار دهیم.

اعلام اختتام جنگ از طرف آمریکا خصوصا به زبان اوباما رییس جمهور و فرمانده اعلی تمام نیروهای آمریکای، صراحت بر اعلام شکست آمریکا در جنگ افغانستان است.

در حالی که فرمانده اعلی نیروهای آمریکایی بر شکست در جنگ اعتراف می نماید، پس ادعای باقی گذاشتن شماری محدودی از نیروها به امید حفظ وضیعت اشغالی افغانستان، کاملا نقیض اعتراف قبلی و نمایانگر ادامه پالیسی جنگ طلبانه آمریکا در جهان اسلام است، جنگی که اکنون برای ملت آمریکا هرگز مفهومی ندارد جز تحمل تلفات جانی و زیان های پی هم اقتصادی. زمانی که جنگ در تاریخ بشریت ازجانب نیروی یورش گر آغاز می شود، اختتام نبرد و جنگ حتما دارای پنج حالت می باشد.

۱ـ اختتام جنگ زمانی اعلام مي شود که جانب مقابل جنگ، با شکست مواجه شده و نابود گردد.
۲ـ درصورت عدم نابودی جانب مقابل، باید در اثر فشارهای نظامی سر تسلیم خم نماید و اسلحه بر زمین بگذارد.

۳ـ به میان آمدن سازگاری با هم، یعنی هر دو جانب بدون این که یکی بر دیگر برتری حاصل نموده باشند باید روی مذاکرات به یک توافق سومی دست یابند.

۴ـ به اثرفشارهای نظامی و کوبیش، جانب مقابل مایوس شده فرار را بر قرار ترجیح دهد وصحنه را ترک نماید.
۵ـ اینکه جانب آغازگر جنگ بدون اینکه کدام دست آورد داشته باشد، اعلان اختتام جنگ نماید و عقب نشینی کند، در این صورت معلوم است که جانب یورشگر حوصله جنگی را از دست داده و با شکست مواجه می گردد.

بدون در نظرداشت موارد فوق، تصور بیرون رفت از جنگ و اعلان اختتام آن هرگز ممکن نیست. پس بر میگردیم به اعلام یک جانبه اختتام جنگ از طرف اوباما.

-آیا نیروهای آمریکایی تحت فرماندهی اوباما توانسته اند جانب مقابل جنگ یعنی مجاهدین افغانستان را نابود کنند؟

-آیا جانب مقابل آمریکا، روی فشارهای دوازده ساله نیروهای اشغالگر آمده اند تا اسلحه به زمین نهند و سر تسلیم به اهداف آمریکایی خم نمایند؟

-آیا روی کدام نشست و توافق مستقیم یا غیرمستقیم هردو جانب به کدام توافق سومی دست یافته اند تا روی آن جنگ خاتمه یابد؟

-آیا به اثر استعمال نیرو امریکایی(با استفاده از تمام امکانات جنگی عصرکنونی) مجاهدین از صحنه جنگ فرار نموده اند، تا میدان جنگ خالی بماند و نیاز به اعلام اختتام جنگ باشد؟

درصورتیکه جانب مقابل جنگ نابود نشده، بلکی نیرومندتر شده باشد، به فشارها هم تسلیم نه شده است، روی کدام توافق با آمریکا متارکه جنگ هم نه کرده و نیز پا به فرار هم نه گذاشته است، بلکی برعکس دوازده سال است که با ۴۹ کشور مجهز و نیرومند جهانی در گیر است، پس اعلام اختتام جنگ از طرف جانب آغازگر جنگ چه مفهومی را افاده می کند؟

پاسخ واضح است، آمریکا اعتراف نمود که دیگر نمی تواند جنگ افغانستان را با حجم و ثقلی که دارد تحمل کند، بلکی از موقف خود عقب نشینی می کند و به اعلام اختتام جنگ، دیگر این جنگ پرمصرف را باخت و میدان را ترک می نماید، این اعلام اگر چه در لفافه صورت گرفت ولی تمام جهان و بشریت شاهد است که آمریکا در ظرف دوازده سال بدون اینکه تلفات دیده باشد، مردم ملکی را به شهادت رسانیده باشد، ظلم و وحشت را بر افغانستانی های بی دفاع روا داشته باشد چیزی بیشتری انجام نه داده است.

نتیجتا اقتصاد خود را از دست داد، به تریلیون ها دالر ضایع شد، دها هزار عسکر آمریکایی که بدون شک آرمان ها، اهداف و نیز حق زندگی در دنیا داشتند روی پالیسی جنگ طلبانه آمریکا به هلاکت رسیدند، معیوب شدند، دچار مشکلات روانی شدند و رنج های جنگ فلاکت بار، بی هدف و بی نتیجه را تحمل نمودند.

با در نظرداشت اعتراف شکست، جزء دومی سخنرانی اوباما یعنی حرف از باقی گذاشتن چند هزار عسکر در افغانستان، انسان را متوجه می سازد که سیاسیون آمریکایی با موجودیت تجربه های دوازده ساله هنوز هم وضیعت را در افغانستان دقیق پی نبرده اند و هنوز هم می خواهند ناکامی های پی هم را به آزمایش گیرند.

پسوند باقی گذاشتن عساکر اشغالگر، می تواند دو هدف داشته باشد.

۱ـ آمریکا نمی خواهد و حاضر نیست جهانیان شکست آمریکا را آشکارا مشاهده کنند و آن را پی برند، به خاطر جلوگیری از اعلام آشکار شکست که واضحا تمام منافع آمریکا را که من حیث ابر قدرت جهانی از آن بهره می بورد به مشکلات جدی و عملی مواجه می سازد، آمریکایی ها هنوز هم از باقی گذاشتن عساکر در افغانستان حرف می زنند و به گونه وانمود می کنند که بر وضیعت کنترل دارند.

۲ ــ علت دومی حرف از باقی گذاشتن نیروها در افغانستان، هنوز هم امید کاذب سیطره برمنطقه است، که آمریکایی ها آنرا از موقیعت افغانستان در سر می پرورانند.

در عمل هردو علت فاقد صلاحیت تضمین اهداف آمریکایی ها می باشند.

لیکوال : استاد قیام الدین کشاف د کرزي د اداري لوړپوړي چارواکی
ترتیب: حافظ محمد خراساني

# د ظالم تقویه لوی جرم دی

یو بام دوه هواوي
د روسي یرغلګر ځواکونو د یرغل په مهال ټولو جهادي ډلو هڅه کوله چې خپله کړنلاره د قرآن او حدیث سره سمه وښیي، د مقابل لوري د ځپلو او مغلوبولو لپاره به یې په قرآني آیاتونو او نبوي احادیثو باندي استناد کول او د هغوی د ناوړه اعمالو مذمت او غندنه به یې کوله.
د افغانستان د مجاهدینو د اسلامي اتحاد د مشر استاد عبدالرب رسول سیاف په منظوري د استاد قیام الدین کشاف کتاب اسلامي نظام د تنظیم فرهنګي کمیټې له لوري له نن نه ۳۲ کاله مخکې په کال ۱۳۷۲ هـ ش کې چاپ ته وسپارل شو.
کتاب یقیناً پر محتوا د اسلامي انقلاب د ځوانانو لپاره یو لارښود کتاب دی. خو خو د کتاب لیکوال او د تنظیم مشرتابه چې اوس مهال په کابل کې د صلیبي مزدوري اداري لوړپوړي چارواکي او حامیان دي د همدې کتاب تر فتوا ګانو، بریدونو او ګزارونو لاندي دي. او د (خپل خنجر په خپل سر) عملي مصداق ګرځیدلي دي.
مورږ د اسلامي نظام د کتاب د لومړي ټوک، ۲۷۷ مخ یوه موضوع (د ظالم تقویه لوی جرم دی) له لاسوهنې څخه پرته کټ مټ را نقل کړي
تاسو درنو لوستونکو ته یې د مطالعې بلنه درکوو. (خراساني)

د اسلام پاک دین چې څنګه د ظلم او ظالم تقبیح او غندنه کوي، همدغسي هغه چاته هم د کرکې په نظر ګوري، چې هغه د ظالم ملاتړ کوي، د ظالم د حکم اطاعت کوي، د ظالم نوکري او ماموریت کوي، د ظالمانو په ردیف او قطار کښې دریږي، یا داسې چاري سر ته رسوي، چې له هغه نه د ظالم په حرکتونو باندي خوښۍ څرګندیږي. د الله تعالی فرمان دی چې: و لاتطیعوا امر المسرفین. الذین یفسدون في الارض و لایصلحون. تاسي د هغو له حده تیریدونکو کسانو د حکم اطاعت مه کوئ، چې په ځمکه کښې فساد خپروي او اصلاح نه کوي، یعني دا چې د خدای د شریعت د حدودو پابندي نه کوي، د خدای احکامو ته غاړه نږدي، د خدای شریعت نه په خپل ځان تطبیقوي او نه نورو ته د دې موقع ورکوي، چې د هغه د انفاذ په لاره کښې حرکت وکړي، بلکې د دې په ځای فساد خپروي، ظلم رائجوي، د فحشاوو، فسق او فجور لاري تقویه کوي، د خدای د قوانینو په ځای د شیطان او طاغوت قوانین نافذوي، د نیکیو مخه نیسي او د بدیو تعمیم ته زمینه مساعد وي، یا د قرآن کریم په بل تعبیر " و یصدون عن سبیل الله" خلک د خدای له لاري نه منع کوي او د شیطان لاري ته یې را اړوي، ((یادونه: د لیکوال قلم دلته داسې غلط شوی، چې د ده راتلونکې ترې جوتیږي، لیکلي یې دي چې د شیطان لاري ته یې را اړوي، یعني ځان یې د شیطان په لاره کې ګڼلی، پکار خو داسې وینا وه چې د شیطان لاري ته یې وراړوي)) نو د دغه راز کسانو تقویه او د هغو مستقیمه او غیر مستقیمه ملګرتیا د خدای د قهر او غضب موجب او د اسلام له دائرې نه د وتلو او خارجیدو معنا لري. د خدای د ګران حبیب حضرت محمد (ص) وینا ده: (من مشی مع ظالم لیقویه وهو یعلم انه ظالم فقد

خرج من الاسلام)، چا چې د ظالم ملګرتیا وکړه، د دې لپاره چې هغه تقویه کړي او دی پوهیږي هم چې هغه ظالم دی، په حقیقت کښې دی له اسلام نه وتلی دی. یو مؤمن باید د ظالم له ملاتړ نه په کلکه ځان وساتي که هغه ظالم فرد وي، که ډله، حکومت وي او که سلطنت وي. ، مشهور تابعی حضرت عطاء بن رباح (رح) ته چا عرض وکړ، چې زما ورور د بنی امیه په حکومت کښې د کوفې د والي منشي دی، د چارو فیصلې کول د هغه وظیفه نده، البته کومې فیصلې چې صادریږي، د هغه په قلم لیکل کیږي، که هغه دغه نوکري ونکړي، نو بل عائداتي مدرک یې نشته ، مفلس به شي، حضرت عطاء په ځواب کښې د قرآن کریم د سورة قصص ۱۷ آیت ولوست، چې په هغه کښې د فرعون له حکومت سره د حضرت موسي (ع) چې لا په هغه وخت کښې پیغمبر نه و، تاکل شوي د مقاطعې اعلان کیږي او وايي (قال رب بما انعمت علي فلن اکون ظهیراً للمجرمین) د دې آیت له اوریدلو سره سم منشي وویل: له نن ورځې وروسته به د بنی امیه د احکامو په لیکلو کښې زما قلم و نه خوځیږي، حضرت عطاء وفرمایل: خیر نو الله به هم تا له روزي څخه محروم نکړي.

د روح المعاني د ۲۰ ټوک په ۴۹ مخ کښې راغلي دي، چې ضحاک خو یوازې د دې خبرې لپاره د عبدالرحمن بن مسلم لیږل غوښتل چې هغه د بخارا د خلکو معاشونه هغو ته یوسي او پرې ویې ویشي، مګر هغه له دې خدمت نه هم انکار وکړ. د هغه دوستانو هغه ته وویل: د دې خبرې نو څه باک دی؟ هغه وویل: نه غواړم چې د ظالمانو په هیڅ کار کښې مرستندوی اوسم.

د امام ابو حنیفه (رح) دغه واقعه د هغه ټولو مستندو سوانح لیکونکو الموفق المکي، ابن البزاز الکروي، ملا علي قاري او نورو لیکلې ده چې د هماغه په امر د منصور عمومي قومندان حسن بن قحطبه پدې وینا سره له خپلې وظیفې نه استعفاء ورکړې وه، چې تر نن ورځې پورې چې ما ستا د سلطنت د ملاتړ لپاره څه کړیدي، که دا د خدای په لار کښې وو، نو زما لپاره همدومره کافي دي، خو که دا د ظلم په لار کښې وو، نو زه پخپله عملنامه کښې د نورو جرمونو زیاتول نه غواړم.

ګرانو او محترمو لوستونکو! کله چې له یو غیر عادل مسلمان حکومت سره مرسته او د هغه تقویه کول د اسلام له نظره جرم دی، د هغه چا په باب څه فکر کوئ، چې هغه د یو کافر، دهري (صلیبي) حکومت ملاتړ وي، یوازې کافر او دهري نه بلکې ظالم هم تر داسې اندازې پورې چې د فرعون او نمرود ظلمونه او د هغه د جبر او تشدد داستانونه یې له اذهانو څخه هیر کړل. د دغسې حکومتونو مثال یوې خوانه په منځنۍ ختیز کښې صهیونستي ښکیلاک دی، چې د فلسطین په مجاهد ولس باندې یې د کلونو په اوږدو کښې د وحشیانه مظالمو داسې لړۍ روانه کړیده چې درنده ځناور هم ترینه امان پناه غواړي، د هغه د ځوان نسل په وینو باندې لاسونه سره کول خو لا څه، چې د هغو د تور سرو او معصومو ماشومانو او اطفالو په وژلو یې هم ایله ونکړه، که هر څو د نړۍ د خواخوږي بشریت لخوا محکومیږي پروا یې نشته او هماغسې خپلو ظلمونو ته ادامه ورکوي، له بلې خوا بل ژوندی مثال په افغانستان کښې د روس سفاک او خونړی وحشي ښکیلاک دی، چې په بې شرمانه ډول او بې موجبه په غاصبانه توګه یې خپل سره پوځونه له بې شمیره ټیارو، ټانکونو او راز راز درندو او سپکو مدرنو مهلکو او تباه کوونکو وسلو سره د اسلامي واړه هیواد افغانستان خاوري ته داخل کړیدي او له کلونو را هیسې د وحشیانه خونریزی پروګرام پر مخ بیایي. نه یوازې لکونه بیګناه ځوانان، زاړه، تور سري او ماشومان یې ووژل، بلکې په دغه هیواد کښې یې د ژوند ټول وسایل هم تباه کړل. اوس نو که څوک د دغو له خدایه منکرو روسانو او د هغو د بیدینه غلام صفتو مزدورانو نوکري او ماموریت کوي او د هغه په مقابل کښې په ټیټو سترګو اجوره اخلي. نه ها خوا ته خپلو ورانو کورونو ته ګوري، نه د خپلو وروڼو وینو ته، نه خپلو سر تورو خویندو ته او پلمه یې دا ده چې روزي ګټو او ورسره د مسلماني دعوه هم کوي، آیا د دوی دغه عظیم جرم د خدای او د مؤمن ملت په وړاندې د ښښنې وړ ګرځیدای شي؟ هیڅکله نه، هیڅکله نه (او ربښتیا هم هیڅکله نه)





# آيا غواړې دښمن دې و ژاړې؟

د ابن ماجه په يو حديث شريف کې له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی، هغه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې: کله چې يو انسان د تلاوت د سجدې کوم آيت ولولي او بيا سجده وکړي، نو شيطان يو طرف ته کېني، ژاړي و وايي، ای زما هلاکته!

د ادم بچيانو ته چې د سجدې امر وکړی شو نو هغوی سجده وکړه، نو هغوی ته به جنت وي، ماته چې د سجدې امر وشو او ما انکار وکړ نو ماته دوزخ دی.

اللهم لا تزغ قلوبنا بعد ما هديتنا...

اللهم يامقلب القلوب ثبت قلبي علی دينک

واللهم صلي وسلم علی حبيبي رسول الله



srak



سنگها اندر کف بوجهل بود
گفت اي احمد بگو اين چيست زود

گر رسولي چيست در مشتم نهان
چون خبر داري ز راز آسمان

گفت چون خواهي بگويم آن چه هاست
يا بگويند آن که ما حقيم و راست

گفت بوجهل اين دوم نادرترست
گفت آري حق از آن قادرترست

از ميان مشت او هر پاره سنگ
در شهادت گفتن آمد بي درنگ

لا اله گفت و الا الله گفت
گوهر احمد رسول الله سفت

چون شنيد از سنگها بوجهل اين
زد ز خشم آن سنگها را بر زمين

(مثنوي معنوي)

**تشريح** : اظهار معجزه پيغمبر صلي الله عليه و سلم به سخن آمدن سنگ ريزه در دست ابو جهل عليه اللعنه و گواهي دادن سنگ ريزه بر حقيت محمد صلي الله عليه و سلم به رسالت او